


# پښتني قبيلې
# او
# روايتي شجرې

د میوند د تاریخي برۍ د
یوسلو شلمې کالیزې په ویاړ

محمد معصوم هوتک

# پښتني قبيلې

# او روايتي شجرې







ليکوال

محمد معصوم هوتك

۱۳۷۹ ش

# د کتاب پېژندنه


نوم : پښتني قبيلې او روايتي شجرې

ليکوال : محمد معصوم هوتك

خپرندوی : د افغانستان د کلتوري وډې ټولنه - جرمني

د خپرونو لړ : (۱۷)

چاپشمېر : ۱۰۰۰ ټوکه

چاپنېټه : ۱۳۷۹ ل - ۲۰۰۰ ميلادي کال

اهداء

زما گراني مورته
چي ميو يې قلم په گوتو کي
راايښي او بل مي د قيس عبدالرشيد
نوم واردواره ددې له خولې
اوريـــدلى دى .

## دمطالبو فهرست


| عنوان | مخ |
| --- | --- |
| د خپرندويې ټولنې يادښت | الف |
| دسرخبري | يو |
| لومړى څپركى | |
| پښتانه څوك دي ؟ | |
| پښتون ـ افغان ـ پټهان | |
| پښتون | ۱ |
| افغان | ۴ |
| پټهان | ۸ |
| دوهم څپركى | |
| دپښتنواصل ونسب | |
| دپښتنودبنى اسراييليت نظريه | ۱۴ |
| مخزن افغانى | ۱۵ |
| قيس څوك ؟ | ۲۱ |
| دپښتنودبنى اسراييليت نظريې كمزوري .... | ۲۴ |
| دبنى اسراييليت دنظريې دمنځ ته راتگ .... | ۳۰ |
| دريم څپركى | |
| روايتي شجرې | |
| شجره څه ته وايي؟ | ۳۶ |
| اودل ـ ابدال ـ اپتل ـ هفتل ـ يفتل | ۴۴ |
| الكو ـ اراكو ـ الكوزى ـ اراكوزى | ۴۶ |
| اڅك ـ اڅكزى | ۴۸ |

| عنوان | مخ |
| --- | --- |
| بړيڅ ـ پروټ ـ ډاسو ـ اپرېدی | ۵۰ |
| ساك ـ سهاك ـ ساكزی ـ اسحاق زی | ۵۰ |
| ځلرم څپركی | |
| غرزی ـ غلزی ـ غلجی ـ خلجی | ۵۶ |
| غلجي څوك دي ؟ | ۶۱ |
| اصل و وصل | ۶۶ |
| مورته منسوب قومونه .... | ۷۰ |
| خلجي او غلجي | ۷۳ |

## د خپرندويې ټولنې يادښت

له ډېرو کلونو راهيسې د پښتنو دنسل او دغه راز د پښتني قبيلو د شجرو په اړه د کورنيو او بهرنيو څېړونکو له خوا يو شمېر څېړنې شوې دي. په دغو څېړنو کې، يوه زياته برخه يې تر ډېره ځايه په افسانو او افسانوي ډوله ليکنو پورې اړه لري او يو شمېر يې هم هغه مهمې تاريخي څېړنې دي چې د پښتنو دنسل او دغه راز د پښتني قبيلو په اړه علمي- تاريخي ارزښت لري.

دښاغلي ليکوال محمد معصوم هوتک "پښتني قبيلې او روايتي شجرې" نومی کتاب د همدغې لړې يو مهم کتاب دی، چې ددې موضوع په اړه پخوانيو څېړنو ته انتقادي نظر هم لري او په دې هکله يې يو شمېر نوي ټکي رابرسېره کړي او روښانه کړي دي.

" د افغانستان د کلتوري ودې ټولنه " ځان نېکمرغه ګڼي چې دغه اثر د چاپ په ګاڼه سينګاروي او د پښتني قبيلو دشجرو په اړه يو علمي اثر خپلو هېوادوالو او ددې موضوع مينه والو ته وړاندې کوي.

موږ ددغه اثر چاپ په دې اړه يو مهم ګام ګڼو او له

خپلو درنو ښېرونکو ښخه هیله لرو چې د همدې موضوع په اړه نوې علمي ښېړنې د خپلو هېوادوالو مخې ته کښېږدي.

په درناوي
دافغانستان د کلتوري ودې ټولنه
جرمني- دکولن ښار
۲۰۰۰-۹-۲۶ م

# د لوی خدای (ج) په نامه

یاایهاالناس انا خلقنکم
من ذکر و انثی و جعلنکم
شعوبا و قبایل لتعارفو
ان اکرمکم عندالله
اتقکم ان الله علیم خبیر ٥

## د سرخبري

د پښتنو دنسبي شجرو او روایاتو په باب ښه ډېري خېړني سوي دي . د هروي نعمت الله له مخزن افغاني رانیولې بیا زما تر دغي لیکني پوري ټولو ددغي موضوع پر یوه یا بل اړخ خبري کړي دي . په تېره بیا په دې وروستیو وختو کي په دې برخه کي ښېني درنې لیکني هم سوي دي چي په هغو کي د اروابښاد سرمحقق دوست شینواري ، استاد محمد انور نومیالي او پوهاند دوکتور حبیب الله تږي له خوا دلیکل سوو رسالو او کتابو یادونه لازمه ده .

ما د پښتنو د ایتنیکي جوړښت او نسبي شجرو په باب له اوږدې مودې څېړنه کړې ده چي د « ډېوې » مجلې د دوهم او دریم کال په ګڼو کي خپره سوې هم ده .دغه راز مي

د ښاغلي پوهاند دکتور محمدحسن کاکړ د غــــوښتني له مخي ددغو څېړنو لنډيز ددوی له خوا په نوي تدوين او تاليف سوي کتاب « رښا او دفاع » کي هم خپور کړ .
استاد محمد انور نوميالي د يوه ليک په ترڅ زما دغه څېړنه خوښه کړې وه او راته کښلي يې وه چي « کاشکي موخپلي څېړني سره شريکي کړي وای . » د تېرکال په پای کي زما ګران دوست اود پښتو ژبي پياوړي ليکوال ښاغلي زرين انځور راڅخه وغوښتل چي دغه څېړني که د يوه ځانګړي اثر په توګه خپرې سي ، ښه به وي . د چاپ په برخه کي يې ده په جرمني کي دافغانستــان دکلتوري ودې د ټولني په نمايندګي خيګر ( ټټر ) وټکاوه . ما پر خپلو يادابښتو او خپرو سوو ليکنو باندي له سره غور وکړ . ځيني سموني او زياتوني مي پکښې راوستې او په دغه اوسني بڼه مي سره راغونډي کړې .

درنو لوستونکو ته بايد عرض کړم چي زما دغه ليکنه د پښتنو د نسبي شجرو بشپړه کره کتنه نه ده خود هغې پرلور يو ګام دی او يوشمېر کلي نتيجي پر بنا دي . که په دې برخه کي زه پر کږه تللئ يم ، هيله لرم چي دوستان خپل نــــظر راڅـــخه و نـــــــه سپموي .

په درناوي

محمدمعصوم هوتک

ټورنټو ــ کاناډا

۲۰ مې ۲۰۰۰ م

# لومړی څپرکی

## پښتانه څوك دي ؟

### پښتون ـ افغان ـ پټهان

الف : پښتون : دنړۍ داولسونوپه ټولې کې پښتون یو لرغونی قوم دی چې دزمانې ډېرې سړې او تودې پر راغلي دي ، دسترو یرغلګرو تاړاکونه یې لیدلي او مقابلې یې ورسره کړي دي اوتر ډېرو سختو ازمویښتونو سرلوړی او بریالی راوتلی دی له تېروخه کم شلو کلو راهیسې بیا داقوم له یوه بنیادي ازمویښت سره مخامخ دی چې لا تراوسه هم پکښې ولاړ دئ ، دښمنانوپې دتاریخ ، ژبې او هویت دپایمالولو له پاره ناکام تلاښونه پیل کړي دي .

له څلورمې هجري پېړۍ راوروسته مورخینو د پښتنو بیان په څرګند ډول کړی چې تفصیل به یې وروسته راسي خوترمیلاد نژدې یو زر و پنځه سوه کاله وړاندي مونږ د هندي آرینو په ویدي سرودونو کې د « پکهت » پر نامه پښتنو چې د زیاترو کورنیو او بهرنیو پوهانو په نظر ، دغه کلمه د « پښت » معادله کلمه ده او زیاتره افغاني پوهان د « پښتون » نوم له همدې کلمې څخه راوتلی ګڼي .

مشهور یوناني مورخ هیرودتس ( ۴۸۴ ق م ) چې په حقه سره یې « دتاریخ دپلار » لقب ګټلی دی ، دهخامنشیانو د بحث په ترڅ کې دښاوخوا سیمې داوسېدونکو په باب بیان لري او دهغو د مشرانو نومونه

راوړي ، دګړو وړو په باره کي يې ږغېږي . نوموړی ليکي چي « آرينان Arians د ميديانو Medes په شان غشي لري خو نور وسايل يې باختريانو Bactrians ته ورته دي . دګندهاريانو جامې هم د باختريانو په په شان دي » . ( ۱ ) په دې لړ کي د پکتيس Pactyes يادونه هم کوي او ليکي : « پکتيس واسکټونه Cloaks ( ۲ ) اغوندي ، محلي لېندۍ او نېزې له ځانو سره ګرزوي . ( ۳ ) بل ځای د کوچيانو بيان راوړي چي دی ورته Sagartians وايي او ليکي : ددوی ژبه پارسيانو ته ورته ده خو وسايل يې تر پارسيانو پکتيسانو ته نژدې دي ، اته زره اسونه لري . ( ۴ )

د هيرودتس Herodots پکتيان دزياترو مورخينو په اتفاق همدغه ننني « پښتانه » دي . ( دتفصيل له پاره اسلامي دايرة المعارف ــ لومړی ټوك ـ د « افغان » بحث وګورئ ) . دپښتنو اصلي ټاټوبی يوه پراخه سيمه وه چي د ننني افغانستان زياتره برخي او دپاکستان شمال شرقي خواوي پکښې شاملي وې . ددې پراخي اورشو پخواني نوم « روه » و . دتاريخ فرشته دبيان له مخي « روه » هغو سيموته ويل کېده چي له سواته نيولې د سيوي تر بناره او له حسن ابدال څخه تر کابل و کندهار پوري غزېدلي وې . رياض المحبت د « روه » پولي له ايلمن ( ننی هيلمند ) څخه تر قشقار پوري ، له براهوي بلوچستان څخه تر کشمير پوري ښودلي دي . ګويا په دې ډول په « روه » کي داصلي افغانستان ټولي سيمي شاملي وې . ( ۵ ) له تاريخي اسنادو

ځخه داسي ښکاري چي پښتانه د اسلام په اوايلو کي له
ادغيس او هراته نيولې بيا دغور تر غرو پوري او دغه راز
ه زابلستان ، گندهارا او د ختيځي پښتونخوا په غرنيو
سيمو کي ميشته وو او هغه د خوشحال خان خبره « سريې
سوري کندهار لم يې دمغار کي » و . په پښتو کلاسيک
:ب کي د « روه » يادونه ډېره سوې ده . اشرف خان
جري وايي

قاصدان له روهه نه راځي مدت شو
سلام باد رارسوي منت يې تم دی

اظم خان شيدا وايي

په هندي ادا يې وکړې په ما چاري
زه شيدا په زړه ساده دروه افغان يم

په معاصرو غيرپښتنو مورخينوکي اروانښاد مير محمد
ديق فرهنگ دخپل کتاب ( افغانستان درپنج قرن اخير )
ل ټوك په دريم باب کي د ( افغان ، پشتون و پتهان )
نامه لاندي يو لړ مطالب راغونډ کړي دي چي زياتره
ګمونه يې سر نه سره خوري . دی ليکي : « کلمات پشتو
نتون که افغانها برزبان و قوم خود اطلاق ميکنند تا سدهٔ
ـهم تنهادر محاورهٔ زبانی بين مردم معمول بود و درآثار
ی به نظر نرسيده است » تر دغه عبارت يوولس کرښي
سته ليکي « ... وهرسه کلمه ( افغان ، پشتون و پتهان
هوتك ) از سدهٔ شانزدهم به بعد درکتابت راه يافته ودر
نی واحد به کاررفته است » او تردې بيان اته ويشت

کربني وروسته بيا ليکي «اکثرمورخان ، محل رهايش نخستين پشتونها را کوههای سليمان و سرزمينهای مجاور آن در غرب رودخانهٔ سند شمرده اند که درآنجا به علت دشوارگذاربودن اراضی ونظام قبيله ای ، به شکل منزوی ونيمه مستقل زندگی ميکردند . ازينجاست که درنبشته های دورهٔ اسلامی تا هجوم مغولان بجز اشارات مختصر ... تفصيل بيشتری دربارهٔ چگونگی زندگی ايشان به نظر نمی خورد . اولين شرح تفصيلی راجع به ايشان ( پشتونها - م هوتك ) درخارج آن خطه در تاريخنامهٔ هرات سيف بن محمد هروی آمده است که دراوايل سدهٔ چهاردهم ميلادی تاليف شده است » ( پر کلماتو تاکيد زما دئ - هوتك )

يوخای تر اوولسمي پېړۍ پورې « پښتو و پښتون » يوازې دخلکو په ژبنيو محاورو کي معمولي کلمې بولي او بل خای بيا پخپله ددغو کلمو ليکل سوي مثالونه تر خپل دمخني حکم درې پېړۍ وړاندې ورکوي . زه نه پوهېږم چي دغه تناقض بايد څه راز تعبير سي ؟

ب : افغان : پښتانه په مجموع کي نورو اقوامو د « افغان » په نامه بللي دي . دوی خپل ځانونه پښتانه او خپله ژبه پښتو بولي . دافغان کلمې په باب پوهانو بېلابېل نظرونه ورکړي دي . ځينو د مهاباراته اسواکا Asvaka ته نږدې بللې ده . اسواکا د گندهارا سيمي ته منسوبه کلمه ده چي د آس د سپرليو معنا ورکوي . ځينو د سانسکريت له اسواغانه څخه راپيداسوې کلمه گڼلې ده چي معنا يې د

سورلیو تاتــــوبی ( سرزمین سواران ) دی . په دې ډول وینوچي افغان هم دخلکو او هم د سیمي نوم دی .( ۶ ) ځیني څېړونکي بیادایران د نقش رستم په کتیبه کي د راغلي( ابگان ) یــا ( اوگان ) له پاره « افغان » ډېر ښه معادل بولي . ( ۷ ) داسي نظر هم سته چي اغوان په ارمني ژبه کي د غرو اوسېدونکو ته ویل کېده او دانوم پښتنو ته د ارمني گاونډیانو له خوا ورکړه سوی دی . ( ۸ ) البته په ارمني ژبه کي اغوان دغرو اوسېدونکو ته وایي خوداچي دانوم دي په خاص ډول د افغانانو له پاره استعمال سوی وي ، نوره څېړنه غواړي . ( دزیات تفصیل له پاره وگورئ : پښتانه ـ د پوهاند دوکتور حبیب الله تږی اثر ـ ۵۳ ـ ۵۴ مخونه ) .

په اسلامي عصر کي به حدودالعالم لومړنی کتاب وي چي د افغان نوم یې یاد کړی دی ( ۳۷۲ ق ) داروانښاد علامه حبیبي په قول د حدودالعالم مولف « په هغه ځای کي چي دپښتونخوا ښارونه لکه گردېز ، لغمان او نور ذکر کوي ، په سول او ښیهار نومو ځایو کي دافغانانو استوگنه ښیي او داسي ښکاري چي پښتـانه په ښارو کي هم اوسېده او مشهور وو . » ( ۹ ) تر دې یادوني وروسته نو دعلامه ابوریحان البیرونی په گډون د غزنوي دورې دخینو لیکوالو او شاعرانو په آثارو کي دافغان او افغانانو بیانونه موندلای سو . د غزني د دربار شاعر فرخي له نن څخه څه دپاسه زر کاله مخکي ویلي دي :

بکونهٔ شل افـــــغانیان دوېره وتیز
چودسته بسته بهم تیرهای بی سوفار

فردوسی په شهنامه کي زابل ته نږدې د « دشت خرگاه » د اوسېدونکو په باب ډېري خبري لري چي تفصیل به يې وروسته ولولئ . دی وایي :

چنین گفت دهقان دانش پــژوه
مراین داستان را زپیشین گروه
که نزدیك زابل بـه سه روزه راه
یکی کوه بد ، سرکشیده به ماه
بیك سوی او دشت خــرگاه بود
دگـــر دشت زی هندوان راه بود
نشستــه دران دشت بسیارکوچ
زاوغان ولاچین وکــرد و بلوچ

تردې راوروسته نو د سیفی هروی تاریخنامه ( تالیف ۷۱۸ ـ ۷۲۱ هجری ) هغه اثر دئ چي د « افـــغان » او « افغانســتان » نومونه يې په ښېخر راوړي دي . نوموړي مولف د هغه وخت د « افغانستان ټول غیرپښتانه وګړي لا هم « افغانان » بللي دي . ( ۱۰ )

دروښاني غورځنگ ستر مخالف اخوند دروېزه ننگرهاري په مخزن الاسلام کي د « افغان » او حتی افغانســتان یادونه کړې ده . دده خپله وینا داسي ده : الحاصل هرکه میخواهد خود راازبلای هردوجهان نگهداردودراسلام ثابت باشند و درکفرنه افتند ، از پیران

این زمانه احتراز بکنند و مرید نشوند و الاهمچنان احوال اورا پیش خواهد آمد چنانکه دیده می شود درین ایام اکثر هر که از افغانستان وبلایی که درآمده است ازپیری و مریدی درآمده است » . ( ۱۱ )

دپښتو ژبي پخوانیو شاعرانو هم د « افغان » نوم پخپل کلام کي راوړی دی . خوشحال ختك وايي :

دافغان پــــه ننگ مي وتړله توره
ننګیالی د زمانې خوشحال ختك یم

رحمان بابا وايي :

چي کشوردافغانـــــــانو معطر شي
دهربیت مصرع مي زلفي دخوبان کړې

کاظم خان شیدا وايي :

په هندي ادا يې وکړې په ما چاري
زه شیدا په زړه ساده دروه افغان یم

دشلمي پېړۍ په سر کي د افغان نوم له افغاني ملت سره د مینې او په افغانیت باندي د وياړلو یوه نخښه سوه . زیاترو منورینو له خپلو نومونو سره د « افغان » لقب هم کیښ . دې نامه نو نور یوازي د پښتنو تمثیل نه کاوه ، بلکي د هر افغاني تبعه له پاره کارېدله .

له څه مودې راهیسي په خارج کي ځینې افغاني نشرات د ایرانیانو په پیروي د « افغانستاني » ښخونده او مضره کلمه کاروي چي په هیڅ صورت د افغانیت مفهوم نه افاده کوي . زما په فکر ددغي کلمې رواج به د افغانیت

وياړلي صفت ته زيانمن تمام سي .

لکه مخکي چي مي وويل د افغان نوم پښتنو ته نورو ورکړی دی خو وروسته يې دپښتنو ليکوالو او شاعرانو په ليکنه او کلام کي رواج موندلی دی . ( په نړۍ کي نور قومونه هم سته چي دبل چا له خوا ورکړه سوی نوم يې تر خپل نامه ډير عام سوی وي . ويل کيږي چي المانيانوته د « جرمن » نوم د سلتيانو له خوا ورکړه سوی دی او ددوی تر خپل نامه « دويچن » ډېر عام اوتاريخي سو ) . ( ۱۲ ) خو پښتنو خانو ته تل پښتون ويلی دی او له پښتونولي څخه يې دخپل ژوندله پاره د يوه وياړلي اجتماعي قانون په توګه کار اخيستی دی او اخلي يې .

ج : پټهان : پښتنوته د « پټهان » لقب هم ورکړه سوی دی . دالقب دهند په پراخه سيمه کي منځ ته راغلی او پسي عام سوی دی . تر ايجاد وروسته يې د ريښې معلومولو له پاره راز راز توجيهات سوي دي . په مخزن افغاني او له هغه وروسته په ځينو هغو آثارو کي چي د مخزن اغېزه پر پرته ده ، پټهان د « بطان » اوښتی شکل بلل سوی دی او پر زيات سوي دي چي دالقب د آنحضرت صلی الله عليه وسلم له خوا قيس عبدالرشيد ته ورکړه سوی دی . بطان يې د بېړۍ د ملا تير بللی دی . ( ۱۳ ) دځينو په نظر د پټهان د نامه ريښه په هند کي دپښتنو له لومړني تاتوبي سره تړلې ده . فرشته ليکي پښتانه چي د غور له غرونو څخه دهند سيموته ولېږدېدل ، دبهار ايالت په

پټنه کي يې واړول . هنديانو په پټنه کي دهغوی دمېشته کېدو له امله هغوی پټهانان وبلل . ( ۱۴ ) مشهور ناروېژی ختيځ پوه مارګنسترن په پټهان کي د « پښتانه ـ پښتان » ريښه دخيله بولي . ( ۱۵ ) دپټهان توجيه چي هر راز وي ، زما دځېړني موضوع نه ده خو دونه ويلای سم چي دانوم په هند کي ايجاد سوی دی او دپښتنو آثارو ته يې لار کړې ده . حقيقت دادی چي پښتون ، افغان ، پټهان ديوه قوم درې نومونه دي .شاعر وايي :

اسمانه ښه يې واوره په وازکومي درته وايم
افغان پښتون پټان دی يومفهوم يوه نامه ده
ښايست حسن ښکلا ټوله دميني تعابير دي
توپير دی دالفاظو مسمی ټــــوله يوه ده

د : پښتو : د پښتنو ژبه « پښتو » ده . لکه د افغان نوم چي د غيرپښتنوله خوا دې قوم ته ورکړه سوی دی ، دغه راز غيرپښتانه اقوام پښتو ژبې ته « افغاني » وايي . دانوم همدا اوس د تاجکو ، هزاره وو ، اوزبکو او نور سره ورونوقومونو په عوامو کي دپښتو له پاره کارېږي . په پښتو ادبياتو کي د پښتو له پاره د افغاني نوم راوړلو ډېری پخوانی بېلګې سته . دروښاني افکارو مبلغ شاعر دولت لوانی وايي :

افغاني لفظ مشکل و لوست کوښښ نه شه
ورتــــه وشوه کننده ديارلس حــــرفونه

له افغاني لفظ څخه يې مراد پښتو ژبه ده . د نورو

دزیاترو پوهانو په عقیده ، پښتو یوه سوچه آریایي ژبه ده چې د هندواروپایي ژبو دکورنۍ د هندواریاني څانګې د اوستا په ښاخ پورې تړلې ده . دپټې خزانې دروایت له مخې یې د ادبي آثارو څرګونه د هجرت په دوهمه پېړۍ کې لیدلای سو .

اوس پښتو ژبه د یوه ژوندي قوم ژبه ده چې دنوي او معاصر ادب ټولو اصنافو ته یې په خپله لمن کې ځای ورکړی دی او دچا خبره « دسیالانو سیاله ژبه ده » .

په دې شپو ورځو کې د ځینو کسانو له خولې اورو چې د دملګرو ملتو په کومه خپرونه کې ویل سوي چې په یوشتمه پېړۍ کې د نړۍ ځیني ژبې له منځه تلونکې دي او پښتو هم پکښې شامله ده . ماته داخبره معلومه نه ده چې د ملګروملتو ددغې خپرونې د لیکوال استناد به پر کومو دلایلو ولاړ و . ترکومه ځایه چې د ژبو د مرګ و ژوند مساله ده نو دا یوه نوې خبره نه ده . په نړۍ کې مور لکه د ژبو زیږېدل چې لیدلي دي دغه راز مود ژبومړینه هم لیدلې ده . خو دپښتو ژبې د مرګ له پاره زه هیڅ راز توجیهي دلایل نه وینم . په دې ژبه باندې د څلېروېشتو میلیونو په شاوخوا کې وګړي خبرې کوي . د نړۍ دتقریبا ټولو ادبي ژانرونو بېلګې په پښتو کې موندلای سو او له نړیوال ادبي بهېر سره ددې ژبې د اوږه پراوږه یون شاهد یو. که څوک وایي چې دا یون سوکه دی ، وي به . خوهمدا سوکه یون ددې حقیقت ښکارندوی دی چې پښتو ژبه پخپل ذات کې

له دغه یون سره دتګ ورتیا لري . پاته سوه د ژبي د بدلون و بشپړتیا و تکامل خبره . دا حقیقت باید موږ ومنوچي نن٘ی پښتو د روښاني عصر له پښتو سره هم د شکل له مخي او هم د محتوی له رویه توپیر لري . د راتلونکو پېړیو پښتو به په هغه صورت کي چي پخپله پښتانه د مرګي له خوبه راویښ سي ، تر ننی پښتو ډېره بډایه او متکامله وي . خودا کار باید د ژبي د مړیني په توګه تعبیر نه سي . د پښو ژوند دپښتانه له ژوند سره تړلی دی . که پښتون ژوندی و دا به هم ژوندی وي . ( ۱۶ )

## دلومړي څپرکي لمنليکونه

( ۱ ) دهيرودتس تاريخ ـ اووم فصل ـ ۶۶ گنه ـ ۴۹۳ مخ ـ انگرېزي ژباړه . داياداښتونه پياوړي مورخ پوهاند دوکتور محمد حسن کاکړ رالېږلي دي چي مننه ورڅخه کوم .

( ۲ ) کلاکس Cloaks يوډول بې لستوڼو جامې دي چي ارتي غاړي لري اوما « واسکټ » ورته مناسبه ژباړه وبلله .

( ۳ ) هماغه اثر ـ اووم فصل ـ ۶۷ گنه ـ ۴۹۳ مخ .

( ۴ ) هماغه اثر ـ اووم فصل ـ ۸۵ گنه ـ ۴۹۷ مخ .

( ۵ ) کاکړ ـ پوهاند ډاکټرمحمد حسن ـ افغان ، افغانستان و افغانها وتشکيل دولت درهندوستان ، فارس و افغانستان ـ ۱۳ مخ ـ پېښور ـ ۱۹۸۸ م .

( ۶ ) هماغه اثر ـ ۱۶ ـ ۱۷ مخونه .

( ۷ ) تږی ـ پوهاند دوکتور حبيب الله ـ پښتانه ـ ۵۲ مخ ـ پېښور ـ ۱۹۹۹ مارچ .

( ۸ ) کاکړ ـ پوهاند ډاکټر محمد حسن ـ افغان ... ـ ۱۵ مخ .

( ۹ ) حبيبي ـ پوهاند عبدالحی ـ دپښتوادبياتوتاريخ ـ دوهم ټوک ـ ۱۵ مخ ـ کابل ـ ۱۳۴۲ ش .

( ۱۰ ) تږی ـ پوهاند دوکتور حبيب الله ـ پښتانه ـ ۵۷ مخ

( ۱۱ ) اخوند درويزه ـ مخزن الاسلام ـ ۲۰۷ مخ ـ دهلی ـ ۱۳۰۰ ق

( ۱۲ ) نوميالی ـ محمدانور ـ دپښتنودټولنيزتاريخ مبادی ـ ۳۳ مخ ـ مسکو ـ ۱۹۹۷ م .

( ۱۳ ) دامطلب په خلاصه الانساب ، تواریخ خورشید جهان ، پښتانه دتاریخ په رڼا کښې او ځینو نورو کتابو کې راغلۍ دئ .

( ۱۴ ) ظفرکاکاخېل ـ پښتانه دتاریخ په رڼا کښې ـ ۱۰۴ مخ ـ پېښور .

( ۱۵ ) تاریخ تلفظ صرف پښتو ـ ذدوکتور روان فرهادي ترجمه ـ د استاد عبدالحي حبيبي له تعليقاتو سره ـ لومړی ټوك ـ ۲۱۱ مخ ـ کابل ـ ۱۹۷۷ م .

( ۱۶ ) په کوټه بلوچستان کي پــــه ۱۹۹۱ م کال د پښتو « عالمی کانفرنس » جوړ سوئ و او تر څلوپښتو زیاتي مقالې پکښې لوستل سوي وې . دغونډي دمقالو مجموعه چاپ سوې هم ده چي ښه د خوند مطالب پکښې دي . ددغي غونډي يوه برخه وال په خپله مقاله کي غوښتي دي ثابته کړي چي پښتو ژبه نوره ژوندی نسي پاتېدلای اوهرومرو به مري ! دا خو د ليکوال نظر و چي د احترام وړ دئ خو ماته د حيرانتيا ځای دادی چي د « کانفرنس » په پای کي ددغه « دلخراشه » مضمون ليکوال ته انعام هم ورکړه سو !

# دوهم څپرکی

## دپښتنواصل و نسب

### دپښتنو دبني اسراییلیت نظریه :

لکه د پښتنو دنامه په برخه کي چي دپوهانو نظرونه بېلابېل دي ، دغه راز د پښتنو داصل ونسب په باب هم رازْ راز خبري سوي دي . چا دبنې اسراییلو دورکو قبیلو بقایا بللي ، چا قبطیان ، چا ارمنیان ، چا بیا تاتار او ځینو نورڅه گڼلي دي . لیکلي اسناد ښیي چي دې منوضوع ته دلومړي ځل له پاره د زرمي هجري پېړۍ په شاوخوا کي منظم کار پیل سوی دی . دمغول جهانگیر د دربارمنشي خواجه نعمت الله هروي نورزي د نواب خانجهان خان لودي په سپارښتنه او دسمانا دحاکم هیبت خـــــان په مرسته د « مخزن افغاني » په نامه یو کتاب په ۱۰۲۰ هجري قمري کي وکیښ . په دې کتاب کي د پښتنو داصل ونسب په باب مفصله څېړنه سوې ده او د پښتنو قبیلو د روایتي شجرو چارټونه ترتیب سوي دي او په دې برخه کي شفاهي روایتونه په لیکلې توگه ثبت سوي دي . دمخه تر دې چي دپښتنو داصل ونسب په باب د مخزن افغاني روایتونه بیان کړم

ماته دا غوره ایسي چي دغه کتاب او مولف یې درنو لوستونکو ته وروپېژنم .

## مخزن افغاني

دنورزی نعمت الله هروي په قلم په ۱۰۲۰ هـ ق کال کښل سوي دي نعمت الله دخواجه حبیب الله هروي زوی دي وايي چي خواجه حبیب الله هروي داکبرپاچا (جلالدین محمداکبر) له درباریانوڅخه و او۳۵ کاله یې په شاهي محکمه کي خدمت کړي دی . داکترمحمدبشیرحسین داکبرنامي په حواله لیکي چي داسړی هماغه حاجي حبیب الله کاشي دی چي داکبرپه درباریانوکي منلی شخص و. له اکبرسره په یوه تجارتي هیات کي گواته هم تللی و . کله چي اکبرپه۹۹۱ هـ ق کي دخینوخوراکي موادودبیودجگوالي په خاطریولړتدبیرونه ونیول همدغه حبیب الله یې پربوره (شکره) باندي دنگران په توگه ودراوه (۱). حبیب الله داکبرنامي له قوله په ۱۰۰۳ هجري قمري کال په اگره کي مړسوی دی .

دنورزی نعمت الله دژوندپه باب چي څه مواد په لاس کي لروهغه زیاتره دده دمخزن افغاني له سریزي اومتن څخه په لاس راغلي دي اوله هغه څخه څرگندیږي چي نوموړي په اگره یادهندوستان په کوم بل ښارکي زیږېدلي دي . دوړکتوب دزده کړي په باب یې په څه نه یو خبرخودومره پوهیږوچي په ۹۹۳ هـ ق کي دعبدالرحیم خانخانان دکتب خاني ناظم و. خانخانان عبدالرحیم دجلالدین اکبرسپه

سالارو. کله چي تراکبروروسته شهزاده سليم د (جهانګير) په نامه پرتخت کښېنوست ( ۱۰۱۴ هـ ق ) نعمت الله يې د منشي په توګه وټاکه . يوولس کاله يې خدمت وکړاو وروسته يې دخانجهان لودي ملازمت ته ملاوتړله . خانجهان وربانديې دپښتانه ورور په توګه ډېرباوردرلود. نعمت الله له خانجهان لودي سره په هغه سفرکي ملګرى و چي په ۱۰۱۸ هـ ق کال يې دمرهټه وو دارامولو په خاطردکن ته کړى و. په دې سفرکي نعمت الله له يوبل درانه پښتون هيبت خان کاکړسره پېژندلي دي . دهمدغه هيبت خان کاکړ پېژندګلوي اومرسته وه چي نورزى نعمت الله يې دمخزن افغاني پرکښلوبريالى کړ. هيبت خان کاکړدخانجهان لودي نژدې ملګرى واودهغه دژوندډېرحالات ورته ځرګندوو. ده له نعمت الله نورزى سره دپښتنودژوند وژواك ، اصل ونسب په معلومولوکي ډېره مرسته وکړه اوويل کيږي چي دمخزن افغاني په پاى کي چي دهيبت خان کاکړدپلارونيکه حالات بيان سوى دي هغه دده په خپل قلم پرزيات سوي دي . بايد وويل سي چي دمخزن په کښلوکي ترټولوزيات دخانجهان لودي هڅونه اوتشويق ډېراغېزمن واوځيني څېړونکي ددې کتاب دليکلواصلي مشوق خانجهان بولي . (۲)

نعمت الله هروي نورزى دفارسي ژبي شاعرهم و. ددېوان ځرك يې نشته خوپه مخزن افغاني کي يې يودوه شعره راغلي دي . دغه رازپه مخزن افغاني کي د پښتوشعرو شته والى ددې خبري دليل کيداى سي چي

نعمت الله په پښتوژبه پوهیدی که څه هم په هندوستان کي زیږېدلی اولوی سوَیَ و خوخپله مورنی ژبه یې زده وه .

مخزن افغاني یوه دیباچه اومقدمه لري ورپسې په اووه بابه اوخاتمه کي کتاب پای ته رسیږي هرباب اوخاتمه یې بیاپربیلوبیلوفصلونوویشلې ده . دکتاب دخاتمې په درو فصلونوکي یې دسره بنو. بیتنو اوغرغښتوپه قبیلوکي دمشهورو صوفیانوحالات راوړي دي . کتاب په لوی سرکي دپښتنو اصل ونسب څیړي. (دابرخه یې اوس د انسابوپوهانوپه نزد دمنلوړنه ده څکه پښتانه بني اسرایلوته منسوبوي ؟ ) بیادلودیانواوسوریانوحالات بیانوي اوورپسې دخانجهان لودي دژوندکارنامې لیکي. ګه تردې خبري ورتېرسوچي دپښتنوداصل ونسب په باب یې ناسم اوله ځانه جوړسوی نظرونه راوړي دي نورنومخزن افغاني په هندکي دپښتنوستانه وو په باب ډېرګټوراثردی .

ددې کتاب خپني ځانګړتیاوي به دنوموړي اثرداردوژباړونکي له خولې دلته رانقل کړو . ترټولولوړی ښېګنه یې داده چي مصنف دپښتنودحسب ونسب شجرې دلوړي ځل له پاره راغونډې کړي دي چي دتاریخ په کوم بل کتاب کي په دومره تفصیل نه دي بیان سوي .

دخانجهان لودی دحالاتواوفتوحاتوبیان یې ډېرمستنداودبلوروردی څکه دکتاب لیکونکي ډېرکلونه اوپه ډېروکارونوکي دهغه ملګري و .

دسوري شیرشاه دستروکارناموبیان که څه هم په

«تاریخ شیرشاهي» او « واقعات مشتاقي» کي راغلی دی مګردمخزن افغاني معلومات بایدیوداسي اضافت وبولوچي دهغه په مرسته مورږدشیرشاه سترشخصیت نورهم ښه تری پیژندلای سو . په دې برخه کي یې معلومات ثقه اومستنددي.

ددې کتاب یوه بله ځانګړتیاالاداده چي دلودیانواوسوریانودزماني بیان یې له عقله لیري نکلواوافسانوڅخه رابیل کړی دئ .

دکتاب په خاتمه کي چي دپښتنوستانه وو اودخدای ددوستانوکوم معلومات راغونډسوي دي ځیني داسي کسان موندلاي سو چي په نورو ماخذونوکي یې څرك نه لرو.

تر مخزن افغاني وړاندي موږ پر همدې موضوع باندي په دغه کم او کیف کوم منظم اثر نه لرو . د پوهاند دوکتور حبیب الله تږي په قول د ابوالفضل « آیین اکبري » تر ټولو پخوانی لیکلی سند دئ چي دپښتنو د سترو قبایلو یادونه یې کړې ده ( ۳ ) آیین اکبري په ۱۵۹۷ ـ ۱۵۹۸ کلونو کي لیکل سوی دئ . نوموړی پوهاند په دې باب داخوند درویزه ننګرهاري د تذکره الابرار والاشرار روایت هم رانقلوي . ماته د تذکره الابرار والاشرار او مخزن افغاني لیکني همزولي ښکاري او داسي مي لاهم په زړه کي راګرزي چي د اخــــــــوند درویزه ماخذ دي د نعمت الله هروي اثر وي . ( والله اعلم ) د نعمت الله هروي زیار په خپل وخت کي یو نوښت ( ابتکار ) دئ او دمولف او

همکارانو هڅه یې د ستاینې ور ده .

د مخزن افغاني د روایتو له مخې پښتانه بني اسراییل دي او په بني اسراییلو کې د ساول (طالوت ) له نسله ګڼل سوي دي . ساول د حضرت یعقوب ( ع ) په دوولسو زامنوکې د ابن یمین له اولادې څخه و . وایي ساول دحضرت اسماعیل «ع» په زمانه کې دبني اسرایلوپاچاو. دوه زامن یې وو چې ( ارمیا ) و (برخیا ) نومیدل لوریې دحضرت داود مېرمن وه برخیا د حضرت داودوزیراو ارمیایې سپه سالارودارمیازوی افغنه نومیدئ چې دحضرت سلیمان سپه سالاروادبرخیادزوی نوم اصف وچې دوزارت منصب یې درلود. افغنه ته خدای څلوېښت زامن ورکړل اواصف ته اتلس . دحضرت سلیمان دوفات پروخت ددې ورونو (افغنه ـ اصف ) له اولاده دومره پیاوړې قبیله جوړه سوه چې په ټولوبني اسرایلوکې یې ساری نه و.

وایي چې بني اسرایلودحضرت سلیمان تروفات وروسته دخدای نافرمانی ته ملاوتړله ، خدای دبابل پاچا (بخت نصر ) پرمسلط کړاودبني اسرایلوخیني قبیلې حجازته اوځیني غورته مهاجرې سوې حجازته دمهاجروبني اسرایلوورو ستی مشرخالد بن ولیددی چې دځینوپښتنومورنی نیکه بلل سوی دئ . اودغوردبني اسرایلومتاخرسری قیس دئ .

دمخزن افغاني دغه روایت دټولو هغو آثارو له پاره دېره قوي ماخذ حیثیت لري چې په دې برخه کې لیکل

سوي دي . تاريخ مرصع ، خلاصه الانساب ، صولت افغاني ، شوكت افغاني ، توزك افغاني ، تواريخ خورشيد جهان ، دپښتنو تاريخ او نورو دمخزن افغاني محتويات اخيستي دي . دغه راز يو شمېرلوېديځو مولفينو هم دمخزن افغاني پر روايتو تكيه كړې اومنلي يې دي . په غربي څېړونكو كي د بنګال د ايشيټيك ټولني مشر سر ويليام جونز William Jones ، الكساندر برنس Alexander Burnes، ويليام موركرافټ William Moorcroft، چارلس مېسن Charles Masson ، جورج روزG.H.Rose، والټر بيليو H.W.Bellew او هنري جورج راورټي H.G.Raverty د پښتنو دبني اسراييليت دنظريې پلويان دي او په دوى كي جورج روز ددغي نظريې دخورا جدي مدافعينو څخه دى . ( دده دحكمونو په باب به وروسته وږغېږو ) په مقابل كي منسټوارټ الفنسټن Mountstuart Elphinston، جان ملكم John Malcolm او برنارډ ډورن Bernard Dorn يې بيا كلك مخالفين دي او پښتانه اريابيان بولي ( ددغو څېړونكو د نظرياتو له پاره دښاغلي پوهاند دوكتور حبيب الله تږي ددرانه اثر « پښتانه » لوستل له لوستونكو سره فوق العاده مرسته كوي ) .

په پښتنو ليكوالو كي ښاغلي خان روشن خان ددغي نظريې په ملاتړ ډېر څه ليكلي دي . په دې برخه دده د مشهور اثر اردو نوم (تذكره ــ پټهانون كى اصليت اور انكى تاريخ ) دئ .

ددغي نظريې له مخي د حضرت محمد ( ص ) په ژوندکي حضرت خالد ابن وليد ( رض ) خپل هغه تربرونه چي په غور کي اوسېدل ، داسلام دين ته راوبلل . دغور پښتنو د قيس په مشري يو وفد ( جرګه ) مدينې منورې ته ولېږه . دغه وفد هورې د اسلام مقدس دين ومانه او په ايمان مشرف سول . آنحضرت ( ص ) پر قيس باندي د عبدالرشيد نوم کېښېښوو . قيس عبدالرشيد دمکې دفتح په غزا کي برخه واخيستله او د خپلوجنګي کارنامو په وجه يې د « بطان » لقب وګاټه . حضرت خالد خپله لور بی بی ساره ور په نکاح کړه . قيس له خپلو يارانو سره غورته ستون سو او داسلام د دين تبليغ يې پيل کړ . په ۴۰ ق يا ۴۱ ق کي مړ سو . دهمدې نظريې اغېزه دملاعبدالباقي افغان کندهاري په دې لاندي بيتونوکي ليدل کېږي .

پټهان قيس عبدالــرشيد زموږ بابانومونې درې
دوحدت پياله يې نوش کړه له مشرکه شوراپرې
زه دده ترلبوجـــــارېسم دحبيب خپرېې مچ کړ
اولاده يې بهره مندسوه دابـاوو دين يې پوچ کړ
(تهذيب الواجبات ـ پنځم مخ ـ ۱۴۰۸ هـ ق ) ( ۴ الف )

## قيس څوك و ؟

د مخزن افغاني دليکني له مخي او په پښتنو کي د يوې مسلطي عنعنې له رويه ، قيس د اسلام دمقدس دين د بعثت پر وخت دغور دپښتنو مشر و . د اسلام ترمنلو اوله آنحضرت ( ص ) سره تر مشرف کېدلو وروسته يې نـــوم

عبدالرشید سو داخکه چي وايي « قیس » عبراني نوم و . مرگ يې په ۴۰ یا ۴۱ ق کي واقع دئ . د اروابناد دوست محمد کامل او فاضل استاد پوهاند عبدالشکور رشاد د څېړنو له مخي د قیس په نامه یو صحابي هم سته . خو داچي دغه قیس دي هماغه وي چي د جوړسوي افسانوي روایت له مخي دي د غور دپښتنو په نمایندگي مدینې منورې ته تللي و او هورې یې داسلام دین منلئ و، بیا وروسته بیرته غورته ستون سوي او درې زامــن (بېټ ، سړه بن او غرغښت ) خني پاته وو ، هغه مسایل دي چي دثبوت دلایل یې کافي نه دي علامه عبدالحی حبیبي لیکي « کیس پښتو کلمه ده ... ملایانو دغــه نوم معرب ( قیس ) کړاوبه مخزن افغاني کي یې دعربیت افسانې وتراشل سوې چي دغه قیس عبدالرشید دخالد له خپلوانو څخه و او د حضرت رسول ( ص ) په حضور مشرف سوئ و مگر داافسانه حقیقت نه لري او نه په اسلامي تاریخ او سیر یاداحادیثو په کتابو کي دقیس عبدالرشید نوم راغلئ دئ اونه په بل قدیم کتاب کي داافسانه سته اونه قدیم سند لري . د حضرت رســـــول ( ص ) دژوندون ټول وقایع اوهغه وفود چي له نورو هیوادونو څخه ددوی مبارك حضور ته راغلي وه ، ټول وقایع یې دسیر او مغازی او فتوح په کتابو کي منضبط دي خوداقیس بالکل نسته . نو داویلای سو چي دا کیسه فقط دزرم هجري کال په حدودو کي پیدا سوې او تاریخي اصالت نه لري . » ( ۴ ب )

دمخزن له روایت سره سم د قیس دري زامن ( سړه بن ، بیټ او غرغښت ) پاته سول چي اوسني پښتانه دهمدغو دروتنو اولاده ده .خوشحال خان ختك وايي :

پښتون په اصل کي سړه بني دي
یاغـــورغښت دئ یابېټني دي
لودي غلجي دي دبېټني له لوره
په سړه بن پوري بیاکـرلاني دي

داودهغي نظريې لنډيزچي په مخزن کي ثبت سوی دی اووروسته يې پلويان اومخالفين پيداکړل او ترنونسمي پېړۍ پوري د يوې مسلطي او منل سوي نظريې په توګه وچلېده . پلويانويې پښتوژبه دعبراني ژبي يواوښتی شکل وباله اوسامي ژبه يې وګڼله. ددې نظريې له مخي پښتانه پنځونيکونوته رسيږي دسړه بن ، غرغښت اوبيټ اولاددې ته (اصلي افاغنه ) او (متوزيواوکرلانيو ) ته (وصلي افاغنه ) وايي . دنولسمي ميلادي پېړۍ په اوله نيمايي کي اروپايي پوهانو دپښتنودبني اسرايليت نظريه ترپوښتني اوڅېړني لاندي ونيوله اوتراوږدوژبنيوتاريخي اوايتنيکي څېړنووروسته دې نتيجې ته ورسېدل چي دپښتنودبني اسرايليت نظريه پر پاخه علمي تاداو ولاړه نظريه نه ده او افسانوي اړخ يې له ورايه ښرګند دی . البته دتاريخ په ځينو پړاوو کي به د سامي اقوامو ځيني افراد او ګروپونه له پښتنو سره يوځای سوي او پکښې منحل سوي وي ( اوسني سادات اوترهغو وړاندي مثالونه ) خو حقيقت دادی چي نه

پښتانه سامي قوم دی اونه پښتو سامي ژبه ده . ( تفصيل يې وروسته راځي ).

## دپښتنو دبنی اسراییلیت د نظريې کمزوري اړخونه او تناقضات

پښتنو محققينو ددې نظريې دشنلو او څېړلو په نيامت د تورات ( ۵ ) درواېتونو پر بنا اوږدې څېړني کړي دي او په نتيجه کي څرگنده سوې ده چي :

ــ دساول ( طالوت ) په زامنوکي د ارميا په نامه هيڅوك نسته او زوی يې « افغنه » يو خيالي موجود دی . دظفر کاکاخېل دوينا له مخي خو د افغنه نوم په ټول تورات کي نه دی موندل سوی . ( ۶ )

ــ دساول په زامنوکي دبرکيا په نامه يو تن سته چي زوی يې آصف دی خوداچي نوموړی دي دحضرت سليمان ( ع ) په وخت کي وزير مقرر سوی وي ، په تورات کي هيڅ راز اشاره نسته . فاضل استاد پوهاندعبدالشکوررشاد د ( الدرس التام فی التاريخ العام ) په حواله ليکي « دشاول ( طالوت ) دپاچا کېدلو کال ۱۰۹۲ ق م اودمرگ کال يې ۱۰۵۶ ق م ښودل سوی دی اوترشاول وروسته حضرت داود ( ع ) دبنی اسرايلو مشروټاکه سو اوترڅلوېښت کاله واکمنی وروسته په ۱۰۱۶ ق م ومړ .... دورستنی ليکني په رڼا کي هم د درايت په حکم دمخزن افغاني داليکنه زړه ته نه لوېږي چي . وايي ( برخيا او ارميا دساول دوه پس مرگي زامن وو او دهغو زامن آصف او افغنه دحضرت داود وزير او سپه سالار

سول ) داځکه چي که موږ د برخیا او ارمیا زوکړه په ۱۰۵۶ ق م یا ۱۰۵۵ ق م کي فرض کړو نودهغودزامنو ( آصف او افغنه ) زوکړه که دپلرو په شل کلنی کي پېښه سوې وي نو آصف او افغنه باید په ۱۰۳۵ ق م یا ۱۰۳۶ ق م زوکړي او تر شل کلنی په کم عمر کي دحضرت داود غوندي برمیالي پاچا له خوا دوزارت منصب دغه آصف او دسپه سالارۍ منصب افغنه ته ورکول له عقل وعادته لیري ښکاري » ( ۷ )

ـ حضرت خالد بن ولید یو پیاوړی صحابي و او په اسلامي تاریخو کي یې دژوند حالات پوره بیان سوي دي مګر دده دهغه دعوت بیان هیڅ نه سو موندلای چي دغورپښتنو ته دي یې ورکړی وي او ګویا هغوی یې داسلام دین منلو ته رابللي وي . او که فرض محال دغه روایت ومنوهم ، بیاهم دخالد بن ولید په برخه کي دپښتنو دینی اسراییلیت دنظریې دجوړونکو څخه غلطي پېښه سوې ده اوهغه داچي ددوی په نظرخالد بن ولید دامویانو په وخت کي دکابل والي و ، دحجاج بن یوسف له خوا چي دامویانو مشهور ظالم حکمران و ، مرکزته وغوښت سو . خالد دحجاج له بېرې مرکزته نه ولاړ ، په پښتنو ننوت ، له هغوسره یې خښني وکړه او اوسني خالدي پښتانه چي خیني کسان دانسبت «بنګښو » ته کوي ، دده اولاده ده . د فاضل استاد رشاددخېړنو له مخي بایدوویل سي چي دکابل والي خالد بن ولید نه بلکي خالد بن عبدالله القسري و . دغه خالد دیزید لمسی دعبدالله زوی و چي دعربو په بجیله قبیله کي

د قسر بن عبقر له اولادې څخه و او ددغه نسبت په واسطه يې خالد بن عبدالله القسري بولي .په داسي حال کي چي دمخزن دروايت خالد نومی دوليد مخزومی زوی اولقب يې سيف الله و . ده دکابل دوالي په توګه وظيفه نه لرله . دپښتنو دبني اسراييليت د نظريې له جوړوونکو څخه دا دوه خالد نامي سره ګډ سوي دي . ( ۸ )

ــ د بني اسراييليت نظريه راته وايي چي قيس پر څلوردېرشم پښت افغنه بن ارميا ته او پر اووه دېرشم پښت ساول ته رسيږي ( ۹ ) که اوسني پښتانه يوازي دافغنه له نسله وي نو تر قيس پوري ددغو ۳۴ پښتو اولاده څه سول ؟ هغوی خوبه هم پښتانه يا پښتنو ته نزدې قبيلې وې . موږ تراوسه پوري په کوم تاريخ کي دهغوی داولادې په باب څه نه دي لوستي . له قيس څخه ترنن پوري د ډېرو دقيقو شجرو له مخي ۲۶ پښته تېاکل سوي دي . په۲۶ پښته کي په ميليونونو انسانان منځ ته راغلل ، په ۳۴ پښته کي خوبه هرومرو تر دې زيات واى . داپه ميليونونوانسانان چيري تري تم سول ؟

ــ دانحضرت صلعم حضورته که دغوردپښتنوله خوايو هيات دخضرت خالدبن وليد «رض» په تشويق تللی هم وي اومشري يې قيس عبدالرشيدپرغاړه هم وي نوددغه هيات ، وفدياجرګې دنوروغړواولادونه څه سول ؟ داهيات خودغوردپښتنوپه نمايندګی تللی وچي تر راستنېدلو وروسته يې دغور په پښتنو کي داسلام د دين تبليغ ته ملاتړلې وه . نوبيا ددغو پښتنو اولادڅه سول ؟ دې پوښتنو

ته هم چا جواب نه دئ موندلی .

ــ دافغنه له زماني څخه بیا دحضرت رسول ( ص ) تر هجرته ( ۶۲۱ م ) پورې نږدې شپاړس سوه کاله تېر سوي دي . په دې اوږده موده کې به دافغنه له زوزاتو څخه څومره پراخ اولس جوړسوئ وي او دا اولس خوبه هم دپښتنو تربرونه وو . دا اولس څه سو ؟ ددې پوښتني جواب هم نسته

ــ قیس په یوه روایت په ۴۰ ق ( تاریخ سلطانی ) او په بل روایت په ۴۳ ق کې مړ سوی دی . دمړیني پر وخت یې عمر ۸۷ کاله و ( پښتـانه دتاریخ په رڼا کښې ) . وایي چې دایمان تر راوړلو وروسته یې دحضرت خالد له لور ( بي بي سارا ) سره واده وکړ . واده یې باید د ۷ ــ ۱۰ ق کلونو تر منځ سوئ وي او دواده پر وخت یې عمر باید د ۵۷ ــ ۶۰ کلو تر منځ وي . په پښتنو کي مسلط دود داسي دئ چې دقوم سرداران او خانزاده ګان په کم عمر ( په اوله ځواني کې ) واده کوي . قیس به هم له بي بي سارا سره تر واده دمخه بله ښځه یا ښځي کړي وي ځکه دسرداری په حالت کې هغه هم بیادپښتنو د سرداری په حالت کې دیوه سردار له پاره تر ۶۰ کالو پورې مجرد پاته کېدل له عرف و عادته لېرې خبره ده . نوله دې بلي ښځي یا ښځو څخه پیداسوې اولاده څه سوه ؟ او که پښتانه یوازې دبي بي سارا اولاد وي ، نو بیا مور ولي خینو پښتنو ته خالدي پښتانه وایو ؟ دپورتني استدلال له مخي خو ټول پښتانه باید دمور له خوا حضرت خالد ته ورسېږي . داپوښتني هم ټولي بې جوابه پاته

دي .

ــ دپښتو ژبي په باب علمي څېړنو داخبره ثابته کړې ده چي پښتو سامي الاصله ژبه نه ده او لکه وړاندي چي مي وویل دا ژبه دهندواروپايي ژبو په کورنۍ اړه لري . دا څرنګه کېداى سي چي ژبه دي اريايي وي او قوم دي بيا بني اسراييل . ( ۱۰ )

ــ دپښتنودبنى اسراييليت په باب د لويديځو مولفينو ادعاګاني هم جدي تناقضات لري . ما وړاندي داخبره کړې ده چي په لويديځو مولفينوکي جورج روز ددغي نظريې له کلکو پلويانو څخه دی . تاسي دده هغو خبرو ته ځير سئ چي ښاغلي پوهاند دوکتور حبيب الله تږي د خپل نوي کتاب « پښتانـــه » په ۱۲ مخ کي راوړې دي. دی وايي : « روز په پاى کي د ژبي خبره يادوي ( مراد يې دورکو سوو يهودو قبايلو ژبه ده . م . هوتك ) او وايي داځه عجيبه خبره نه ده چي پښتنو دي خپله اصلي عبراني ژبه بايللې وي . ځکه دی وايي کله چي ديوه ولس يو څو قبيلې له خپل ملك او خلکو نه جلا او په يوه بل ملك کي د يوه غښتلي او ګڼ ولس په منځ کي ميشتې شي ، هلته نو بيا داځه د تعجب خبره نه ده چي دغه قبيلې خپله ژبـــــــه بايلي .... » ( پرکلماتو تاکيد زما دئ م . هوتك ) تږى صاحب دهمدغه جورج روز له خولې ليکي : « داسراييلو لس قبيلې .... په نهايت کي افغانستان ته تللي او پښتانه دهمدغو لسو قبيلو اولاده ده . »

يو ځاى پښتانه « دهمدغو لسو قبيلو اولاده » گڼي او بل ځاى وايي چي « يو څو قبيلې له خپل ملك او خلكو نه جلا او په يوه بل ملك كي د يوه غښتلي او گڼ ولس په منځ كي ميشتې سوې .... » ( تاكيد زما دى م . هوتك ) . كه پښتانه د « همدغو لسو قبيلو اولاده » وي نو بيا « دغه غښتلى او گڼ ولس » څوك وو ؟ چي «دغو لسو قبيلو» پكي خپله عبري ژبه بايلوده او اوس په پښتو گړيږي . ددغه ولس ژبه خوبه هرومرو پښتو وه . آيا دا حكم پر دغه حقيقت باندي اعتراف نه دى چي ددغو لسو قبيلو تر وركېدو دمخه دلته يوگڼ او غښتلى ولس واو ژبه يې پښتو وه .

پوهېږو چي ددې نظريې جوړونكي په مغولي واكمنى كي اوسېدل . ددې واكمنى په حدودو ( هند ) كي تر پښتون د ( افغان ) كلمه ډېره مروجه وه . دهغه وخت دپښتنو په نزد هم دافغان نوم تر پښتون لرغونى ښكارېده . ځكه يې نو دساول په كورنى كي دارميا او افغنه افسانه جوړه كړه . كه دوى ته دامعلومه واى چي پښتون ـ پكتهون نوم تر افغان لرغونى دى ، هيڅكله به يې د ارميا پر زوى د افغنه نوم نه واى ايښى بلكي پښتون ته ورته نوم به يې ورته تراشلى واى .

*********

******

****

***

## دبني اسراييليت دنظريې دمنځ ته راتګ عوامل

دپښتنو داصل ونسب او دهغو دقبيلوي شجرو کتابي ثبت په ۱۰۲۰ ق کي سوی دیَ او په دي کال نورزي نعمت الله هروي د « مخزن افغاني» په نوم کتاب وکيښ . داوخت مغول جهانګير پرتخت ناست دی . نعمت الله هروي دخانجهان لودي ملازم و او کتاب يې دهمدې خانجهان په تشويق کښلیٔ دیٔ ( تفصيل يې مخکي بيان سوی دی ) د حيات افغاني ليکوال دپټې محمدحيات خان دمخزن افغاني په حواله کاږي چي خانجهان لــودي دافغانانو ( پښتنو ) د « سلسلهٔ نسب » د معلومولو له پاره خپل ملازمان ( قطب خان ، سرمست خان ابدال ، همزه خان توخی ، عمرخان کاکړ ، ظريف خان يوسفزی ) افغانستان ته ولېږل . هغوی دنسب داسلسله له ساوله رانيولي بيا ترقيس عبدالرشيد پوري نوم په نوم په مفصله توګه ليکلې راوړه ( ۱۱ ) دحيات افغاني مولف ددغي نسبنامې په باب خپل ترديد په واضحو ټکو بيان کړی دی او پوښتي چي دساول له مړيني څخه دوه نيم زره کاله وروسته به آيا دا ممکنه وي چي د دومره اوږدې زمانې مفصله نسبنامه دي سينه پرسينه په سمه توګه رارسېدلي وي ؟ جواب يې ده منفي ورکړیٔ دی . نوموړی مولف وايي دمخزن افغاني هغه قلمي نسخه چي ده ترې استفاده کړې دکابل د يوې معتبري کورنی له کتب خانې څخه ورته غلام حسين عليزي ورلېږلې وه . په دغه نسخه کي دکتاب دتصنيف علت داراز بيان سویٔ دیٔ . دجهانګير

دربارته دایران یو ایلچي راغئ او د پښتنودنسب ریښه یې له دېبانو ( دېوانو ) سره تړلې وبلل اوحواله یې پریوه معتبر کتاب ورکړه . پرخانجهان لودي باندي داخبره درنه تمامه سوه دخپلو ملازمانو یوه جرګه یې چي نومونه یې وړاندي بیان سول ، دپښتونخوا بېلابېلو برخوته ولېږل او دغه نسبنامه او دپښتنو دبنی اسراییلیت نظریه یې بیان کړه . په دې وخت کي د پښتنوله لاسه پاچهي وتلې ده . نه هغه پخوانی برم وریاته دئ او نه مقام . دمغولو په درباركي پاته پښتانه هم په بېلابېلو ډولونو سره تر روحي شکنجې لاندي دي . په دغسي حالت کي چي دخپل اصل ونسب په باب دا راز له سپکاوی ډك توجیهات اوري ، څرګنده خبره ده چي دزغملو توان یې نه سي لرلای . دپاچهی داعادې له پاره خویې دتوري کمی نه محسوساوه او خپلو هلوځلو ته یې امید لاره خو د اصل ونسب دسپکاوی چاره ورته درنه تمامېدله . په دغه راز یوه فضا کي دقیس عبدالرشید سره دتولو پښتنو دتړلو افسانه میدان ته سوه . دا افسانوي نظریه هسي دعادي خلکو له خوا وضع سوې هم نه ده . ډېر دقت پکښې سوی دئ . زیار ایستل سوی چي افسانوي روایتوته دهغي عیني زمینې له مخي چي تفصیل به یې وروسته راسی ، لږځه منطقي او واقعي رنګ ورکړه سي او دهغه وخت دمسلط تفکر پر اساس بایددپښتنوداصل ونسب سلسله د حضرت نوح ( ع ) دریو زامنو ( حام ـ سام ـ یافث ) ته ورسول سي . باید وویل سي چي دریو تنو د

انساني تولیود رسولو عنعنه بوازي په پښتنو پوري منحصره نه ده . په شهنامه کي راغلي دي چي فریدون هم دري زامن ( سلم ، تور او ایرج ) درلودل او جهان یې پر دریو برخو وویشه ، هر زوی ته یې یوه برخه ورکړه . دتاریخ پلار هیرودوت له خولې روایت دی چي داروپا په پراخه نااستوګنه سیمه کي چي واردواره یوسړی پیدا سو ، تارژیتائوس نومېدی او دري زامن یې پیداسول ( لیپوخائیس ، اریوخائیس او کولاخائیس ) . داوستا دروایتو له مخي زردشت هم دري زامن درلودل ( ایست واستره ، اورره تت نره ، هوره چیتره ) . ( ۱۲ ) چي بیرته خپل اصلي مطلب ته راوګرزم ، د پښتنودسامیت دنظریې د منځ ته راتګ پر وخت په هندوستان کي د پښتنو اړیکي له دوو قوتونوسره وې . مغول او هندوان . دظفرکاکاخېل په عقیده مغولو او هندوانو دخپل نسب لړی حام او یافث ته رسول . پښتنو له مغولوسره سیاسي رقابت درلود او له هندوانو سره مذهبي دښمني .ددې له پاره چي له دوی دواړو سره یې اړیکي شلولی او خپل خط یې بېل کړی وي ، ځکه یې نوخپله شجره سام ته ورسوله . دې کاردوې ګټې ورته وکړې . یو یې د خپلې مذهبي عقیدې د تسکین له پاره ځانونه له هندوانو رابېل کړل او عربو ته یې چي ددوی په نظر ډېر مقدس وو ، ورسول اوبل یې له خپلو سیاسي سیالانو سره دمخالفت له پاره تیوریك تاداو جوړ کړ . ددې له پاره چي خپلو شجرو ته یې علمي اومنطقي رنګ ورکړئ وي ، نویې

د ساول په زوزاتو کي د افغنه په نامه یوشخص ور زیات کړ
او پښتانه يې ورسره وتړل .

## د دوهم څپرکي لمنليکونه

( ۱ ) مخزن افغانی ــ اردو ژباړه ( اردو ژباړونکی يې ډاکټر محمد بشير حسين دی ) ـ د سريزي ۱۳ مخ . ۱۹۷۸ م .

( ۲ ) محمد حيات خان ـ حيات افغاني ـ پښتو ژباړه ـ لومړی ټوک ـ ۱۷۰ مخ ـ کابل ـ

( ۳ ) تړی ـ پوهاند دوکتور حبيب الله ـ پښتانه ـ ۲ مخ .

( ۴ الف ) دا بيت ما څه دپاسه څلوېښت کاله مخکي د لومړي ځل له پاره له خپلي مور څخه اورېدلی و .

( ۴ ب ) حبيبي ـ عبدالحی ـ دپښتوادبياتو تاريخ ـ دوهم ټوک ـ ۱۰۲ ـ ۱۰۳ مخونه

( ۵ ) تورات چي په لغت کي قانون ته وايي ، دهغه اسماني کتاب نوم دئ چي پر حضرت موسی ( ع ) نازل سوئ او له هغو څلورو کتابونو څخه دی چي مسلمانانو ايمان پر راوړی دی . په قرآن مجيد کي د تورات پر نامه ډېر پېښېږو . عيسويان دمقدس کتاب لومړيو پنځو برخوته تورات وايي . داپنځه برخي يې په انګريزي کي Pentateuch بولي چي په فارسي متونو کي ورته « خمسه موسی » ويل سوي دي .

( ۶ ) ظفرکاکاخېل ــ سيدبهادرشاه ــ پښتانه دتاريخ په رڼاکښي ـ ۳۵ مخ ـ پېښور .

( ۷ ) محمد حيات خان ـ حيات افغانی ـ پښتو ژباړه ـ

دریم ټوك ـ تعلیقات ـ بامخ ـ کابل ـ ۱۳۷۰ ش

( ۸ ) هماغه اثر ـ هماغه ټوك ـ تعلیقات ـ یج مخ

( ۹ ) پښتانه دتاریخ په رڼا کښې ـ ۲۵ مخ ـ پېښور .

( ۱۰ ) ځینی کسان وایي داخبره ممکنه ده چي قوم دي بنی اسراییل وي او ژبه دې هندواروپایي . په مثال کي يې د Yeddish ژبه راوړي . داژبه دهندواروپایي ژبو په جرمانیك ښاخ پوري تړل سوې او یوه ډېره نوې جوړه سوې ژبه ده چي د Early German او Hebrew یو مخلوط دئ . داژبه ګویا د عبراني ژبي یوه نوې راپیدا سوې لهجه ده . نن ورځ ان دایتالیا ، ترکیې ، هسپانیا ، شمالي افریقا او امریکا یو زیات شمېر یهودان خو لا پرې پوهېږي هم نه . ( وګورئ - Morris N. Kertzer د What is a Jew? لیکنه ـ ۱۱۷ مخ ـ څلرم چاپ ـ متحده ایالتونه ـ ۱۹۷۸ م

( ۱۲ ) خپل ـ هارون ـ آفریده های مهجور علامه حبیبی ـ ۱۲۹ ـ ۱۳۸ مخونه ـ کابل ـ ۱۳۶۷ ش

( ۱۳ ) حیات افغاني ـ پښتو ژباړه ـ لومړی ټوك ـ ۱۷۰ مخ .

# دريم څپرکی

## روايتي شجرې

### شجره څه ته وايي ؟

شجره يا په دقيقه توګه ( نسبي شجره ) چې خيني پښتانه يې دلهجوي ځانګړتياوو له مخې ( سجره ) بولي ، يوه عربي کلمه ده او معنا يې درخته ( ونه ) ده . په انساب ـــــــــــــوکي شجره هغې جنيتيکي نقشې Genealogical Chart ته ويل کيږي چې د کورنى دغړو تر منځ دويني دګډون تسلسل پکښې بيان سوى وي . دغې نقشې ته په انګريزي Family Tree وايي .استاد محمدانور نوميالي د شجرې تعريف داسي بيان کړئ دئ : « نسبي شجره هغه څرګندونه ده چې ديو چا يا د يوې ټولی دمنل سوي مبدې په باره کي ويله کيږي . » ( ۱ )

دنړۍ دزياترو ملتونو افراد دخپلو کورنيو چارټونو په ثبتولو سره غواړي خپله ايتنيکي لوړتيا يا اشرافيت ثابت کړي د امريکا دمتحده ايالتونو زياتره مخوري کورنی

چي غواړي خپله خانداني لوړتيا اواصالت وښيي نو خپلې نسبي اړيکي هغو مسافرو ته رسوي چي په ۱۹۲۰ کال د Mayflower په بېړۍ کي امريکا ته راغلي وو . ( ۲ ) اروپايي اشراف ددې له پاره چي خانداني امتيازونه ترلاسه کړي ، زيارباسي خپل خانونه لرغونو اتلانو ، حتی پخپل زعم خــدايانو ته ورسوي . دعيسويانو په مقدس کتاب Old Testament کي هم د آدم ، نوح او ابراهيم ( ع ) شجرې راغلي دي .

پښتانه دخپلو نسبي شجرو خوندي کول دخپل قوم او قبيلې يو منلي دود گڼي او زده کول يې پر ځان لازم بولي . دوي ته دخپــل قــوم وگــدۍ د سوچــه تــوب مسـالــه زيــات اهميت لري . کله چي د قوم سوچه توب تثبيت سو ، بيا يې نو په کلي او ولس کي حيثيت ، وقار او ټولنيز موقف ډېر درونډ وي . سراولف کېرو د الفنستون له خــــــولې ليـکي« ... قبيـلـوي شجـرې زيـات ارزښـت لـري او ټـول وېشونه او قبيلوي داخلي حکومتونه پر همدې باندي متکي دي . » بل ځای وربـــې زياتوي « ... پښتنو ته شجره د ژونـدانـه سـاه ده او نـورتـه ښـايي دپـاڼي اړول وي . » دوی دخپل پلار ونيکه نومونه او دخپل قومي تسلسل روايتونه. په سينو کي ساتي او هغوی چي بيا په ليك لوست پوهېږي ، په ليکلې توگه يې خوندي کوي . دکورنۍ شجرې معمولا پر اوږدو طومار ډوله کاغذي تراډو باندي ليکلي وي د نسبي شجرو دليکلي ثبت دود زياتره په اشرافي کــورنيو کي باب

( رواج ) دی . ښاري پښتنواو تعليم يافته قشردا دود تر ډېري اندازي خوشي کړی دی . خوپه هيوادکي د تېرو دوو لسېزو تراجيدی د پښتنو يو لوی جمعيت دنړی پر پنځو لويو وچو سره تيت کړ او په نويو مېنو کي دهغوی ټولنيز دريغ ترګوابښ لاندي راغئ نو دنسبي اصالت مړژواندي عنعنه يې بيرته راژوندی کړه .

هغسي چې د پښتنو د بني اسراييليت نظريه دلومړي خل له پاره په مخزن افغاني کي په مفصله توګه ثبت سوه ، دغه راز دهغوی دنسبي شجرو لومړنی مفصل ثبت هم په دغه کتاب کي واردواره پيل سو . مخزن افغاني د پښتنوله عمومي عنعنوي روايت سره سم ټولي پښتني قبيلې او قومونه د بيټ ، سړه بن او غرغښت له لاري قيس عبدالرشيد ته رسولي دي او لکه وړاندي چي ورېل سول قيس داسلام داوايلو دزماني سړی ښوول سوی دی اودا لاهم وايي چي صحابي و . زماپه فکر که د قيس نيکه صحابي توب ثابت هم وي ، بياهم دا درې پښې دده زامن نسي کېدلای او تر اسلامی عصر ډېر وړاندي نومونه دي . که دا درې پښې مورږ دقيس زامن وګڼو نودژوندزمانه به يې دلومړی هجري پېړی شاوخوا وي يعني په دغه وخت کي بايد پښتانه د دټولنيز جوړښت له مخي دافرادو يا کورنيو په حالت کي وي او دقوم يا قبيلې سطحي ته بايد ډېر وروسته رسېدلي وي . پر دې خبره خو تقريبا اتفاق سته چي په دوو ، درو پېړيو کي له يوه فردڅخه دزرګونو يا لکونو کسانو

زیږېدل دعقل و عادت پرخلاف حکم دی . خو تاریخ موږته وایي چي دپښتنو ددغو درو نیکونو ترزماني دوې درې سدۍ وروسته پښتانه دیوه داسي جنګي ځواك په توګه منل سوي دي چي ستر واکمنان حساب ورباندي کوي . په دې برخه کي به بده نه وي چي دا څو بېلګې ولولو :

ـ وایي چي سبکتګین ( د ۳۶۶ ق شاوخوا ) دخپل جنګي ځواك دپیاوړتیا او دخپلي پاچهی دټینګښت له پاره له پښتنو سره خپښي وکړه او د زابل ( زاول ) دپښتنو دیوه مشر لور یې ځان ته وغوښته . ازوابناد علامه حبیبي لیکي چي « چون سبکتګین داماد افغانان شد ، تمام افغانان درلشکر او میجنګیدند . » ( ۳ ) داسي یو ځواك چي سبکتګین غونډي برمیالی پاچا دي یې په زوموالـه پیاوړی کېږي ، باید د شمېر په لحاظ هم زیات او موثر وي .

خودروایتي شجرو له مخي په دغه وخت کي نه دابدالیانو مورث اعلی ( ملك اودل ) زیږېدلیٔ و اونه د غلجیو دموجد اعلی بولګه وه ! چي داپښتانه به نو څوك وو ؟ ( دابدالیانو دمشر نیکه ملك اودل دژوند زمانه د ۴۴۰ هـ ق حدود تاکل سوي دي اوپه همدې اساس باید دغلجیو دمشر نیکه زمانه هم د ۴۰۰ ق حدود وي ) دتېري پوښتني ځواب دادیٔ چي دسبکتګین خپښان دهمدغو اوسنیو پښتنو اسلاف وو خو روایتي شجرو اودهغو پر اساس دقومونو دموجدانو دژوند دزمانواټکلي ټاکلو موږ ناسمي لارې ته رهنمایي کړې یو .

ـ دروایتي شجرو له مخي دبېټ نیکه دلور بي بي متو دوه

زامن وو چي غلجي او ابراهيم ( مشهور په لودي ) سومېدل او د بيټ زمانه بايد ددوهمي هجري پېړۍ شاوخوا وي څکه وايي پلار يې قيس عبدالرشيد په ۴۰ ـ ۴۱ ق کي مړ دی او بېټ هم معمر سړی معرفي سوی دی . دلودي او غلجي زېږېده هم بايد د دوهمي هجري پېړۍ حدود ومنو ( که څه هم روايتي شجرو په کتابو کي لودي د خپل تربور ابدال يا اودل همزولی ښوول سوی دئ او دابدال د ژوند زمانه يې د ۴۴۰ ق تاکلې ده ) خوپه حيرانتيا سره وينو چي دهمدې لودي اولاده دخپل موجد تر زېږېدو په يوه حساب يو نيم سل کاله وروسته او په بل حساب اويا کاله دمخه دشمېر او قوت په لحاظ دومره پياوړي کېږي چي په ملتان کي پوره نيمه پېړۍ پاچهي کوي داسي پاچهي چي حدود يې شمالا او جنوبا له لغمانه ترملتانه وو . وايي ملتان په هغه وخت د يوه ښار نوم نه و بلکي يوې پراخي سيمي ته ويل کېده ، دومره پراخه سيمه چي يوسلو شل زره کلي يې درلودل ( ۴ ) ددې پاچهي بنسټ ايښوونکی حميد لودي و چي له سبکتګين سره يې ددوستی تړون درلود او سبکتګين يې پاچهي په رسميت پېژندلې وه ( ۵ )

دنسب پوهني پوهانو يوه پېړۍ د دريو نسلونو له پاره ټاکلې ده او يوه نيمه پېړۍ له نيکه څخه تر کودي پوري زمانه نيسي يعني پنځه نسله . په پنځه نسله کي انساني زېږېدنه دومره نسي ډېرېدلای چي له خپل ټاټوبي ( کسي غر ) څخه په زرګونو ميله ليري ( ملتان ) کي دي ديوې

درنې پاچهي بنسټ کېښېږدي ، داسي پاچهي د سلطان محمود غزنوي د لښکرو په مخ کي خنډ وي او سلطان مجبورېږي هغه په زياته قوه له منځه يوسي ( ۴۰۱ ق )

ــ غوري پاچا علاوالدين ( مشهور په جهانسوز ) پر غزنوي دولت باندي په ۵۴۵ ــ ۵۴۶ ق کي بری ومونډ ، او دبست وتخارستان ترفتح کولو وروسته له سلجوقي سلطان سنجر سره ونښت . خلك ځني خواتوري سوي وو څکه يې له لښکرو څخه شپېږ زره تنه غلجي و تورك سلطان سنجر ته تسليم سول . ( ۶ ) که دغلجي د ژوند زمانه لکه څرنګه چي د روايتي شجرو څېړونکو ټاکلې ده ، څلور سوه هجري قمري ومنو نو دلته بيا هم د تولد و تناسل له نامکن ډېرښت سره مخامخ کېږو . په يو سل و پنځوس کاله کي له يوه فرد ( غلجي ) څخه دومره اولاده منځ ته راغله چي يوازي درې زره تنه ځوانان يې سلطان سنجر ته تسليم سول . ددې ځوانانو کورنی ( مور و پلار ، خويندي و ورونه ) چي پر زيات کړي ، خبره لکونوته رسيږي . عقل دومره زياته زيږېدنه په يوه لنډه زمانه کي نه سي منلای .

ــ په روايتي شجرو کي متوزي او کرلاني پښتانه ( وصلي افاغنه ) بلل سوي دي . داصل و وصل خبره به وروسته وڅېړو ، څوکه داصل و وصل ( جز و کل ) مفهوم په پام کي ونيسو نوبايد اصلي قومونه تر وصلي د شمېر له مخي زيات وي . مګر اوسنی شمېرني مونږ ته برعکس معلومات راکوي . د پښتنو د قبيلوي ترکيب په باب نسبتا جامع

څېړنه په یوه کتاب کي سوې ده چي د ( پښتني قبیلې ) په نامه د پښتو څېړنو د نړیوال مرکز له خوا په ۱۳۷۰ ش کال په کابل کي خپور سوی دی . په دې کتاب کي د پښتنو قومونو په باره کي تفصیلي خبري سوي دي ، تریوې اندازې یې د ډاډ وړ احصائیې ورکړي دي او داوسېدنو ځای ځایګی یې ښوول سوئ دئ .ما چي داقومونه وشمېرل نتیجه یې په لاندي ډول راووتل :

سړه بني ( اصلی ) = ۶۱ لوی قومونه
غرغښتي ( اصلي ) = ۱۶ لوی قومونه
متوزي ( وصلي ) = ۷۱ لوی قومونه
کرلاني ( وصلي ) = ۲۹ لوی قومونه

اروابناد سرمحقق دوست شینواري په مخزن افغاني کي ټولي درج سوي قبیلې ( ۳۹۵ ) او په هغو کي یې سړه بني ( ۱۰۵ ) ، بیټني ( ۲۵ ) ، متوزي ( ۵۲ ) او کرلاني ( ۱۲۰ ) شمېرلي دي. ( ۷ ) په دې ډول وینو چي د وصلي شمېر تر اصلي واوښت . دا کار خو له ناممکناتو څخه نه دی ، خو عادت و درایت یې نه سي منلای .

د روایتي شجرو په عنعنه کي اساسي تېروتنه داده چي هلته د پښتني ټولني د جوړښت واحدونه د افرادو په توګه منل سوي دي په داسي حال کي چي دا واحدونه افراد نه بلکي دافرادو لویي لویي ټولی دي . ابدال ، غلجی ، وردګ ، خاخی ، منګل ، اځک ، سلیمان ... اونور د افرادو نومونه نه دي بلکي د لویو لویو ټولیو نومونه دي . استاد

نومیالی لیکي : «دپښتنو ایتنیکي مجتمع دیو بشپړ اورګانیزم په توګه تش د منفردو وګړو مجموعه نه ده بلکي یو اجتماعي ـ اقتصادي سیستم دی چي دمادي او معنوي عناصرو له تاریخي ترکیبه څخه د اوږدې زماني په دوران کي دتشکل او تکامل پر لارباندي منځ ته راغلی دی . ددې اورګانیزم واحدونه وګړي نه دي بلکي لو یې لویې قبیلې یا ټپې دي چي دهري یوې تشکل او تکامل دخورا ډېر وخت مولود دئ . . . . » ( ۸ )

پوهاند دوکتور حبیبالله تږی لیکي چي « . . . په پخوانو تاریخونو او آثارو کي رښتیا هم ډېر زیات داسي خیالي او جعلي روایتونه او خام مطالب راغلي دي چي یو یې هم داصولي کره کتني او منطقي استدلال تاب نه لري . یو مثال د پښتنوپه باره کي د افغنه اوقیص عبدالرشید افسانه اودهغې په اساس باندي دپښتنودنسب جوړه شوې شجره ده ، چي هم د منطقي پخواني او ځیني اوسني تاریخونه پرې ډك دي ، او هم په پښتنو کي له ډېر پخوانه په شفاهي ډول رایجه شوې ده . خوکه دا او داسي ډېر نور د پخوانو تاریخونو او آثارو مطالب د اصولي اجتماعي او تاریخي کره کتني د معیارونوپه اساس وڅېړل شي نویقین دئ چي افسانوي اړخ به یې په واقعي اړخ دومره غالب شي چي داټول روایت به بادیوسي . » ( ۹ )

سر اولف کېرو وایي « ددې کیسې خیالي اړخ پوره څرګند سو . حتی د قیس او دده دملګرو نکل هم د

خینو باوري اسلامي منابعو له خوا رد سوی دی . مشهور سیاح البیروني او درباري العتبي ( Alutabi ) دواړه د محمود غزنوي د یوولسمي پیړی د زمانې خلك دي او د قیس نکل ردوي . د دوی لیکني ښیي چي له قیس څخه څلور پیړی وروسته دکابل ولایت لا مسلمان شوی نه و . » . نومـوړی زیاتوي « ... له دغو کیسو څخه د ډهلي د څراغ د تیلو بوی ځي . د دربار افغانانو خپلي شجرې بیانولې او ځان ته یې کریدت ورکاوه حال داچي پښتو یې نه وه زده او په پارسي به غږېدل . دوي دمغول پاچا د خوشالی او خندولو لپاره هر څه ویل » ( ۱۰ )

اوس به دپورتني حقیقت په پام کي نیولو سره د پښتون قوم یو شمېر ستري ځانګي دمستندو تاریخي پېښو په رڼا کي وڅېړو او وبه ګورو چي ددغو ځانګو څرك د راویتي شجرو پر خلاف تر اسلامي عصر ډېر وړاندي موندلای سو .

## اودل ـ ابدال ـ اپتل ـ هفتل ـ یفتل

ابدالیان د پښتنو یوه مشهوره قبیله ده دافغانستان په تاریخ کي ددغي قبیلې رول ډېر زیات دی . دې قبیلې دمعاصر افغانستان دجوړېدوله وخته د دوه نیم سوو کالو په اوږدو کي واکمني کړې چي په هیواد کي دټولو میشته وو پښتنو او غیرپښتنو له خوا منله سوې هم وه . دروسانو غیرمستقیم او مستقیم تیري د دوي واکمني پای ته ورسوله . ددغي قبیلې زیاتره مشاهیر د افغانانو او ټولو پښتنوګډ ملي

ویاړونه دي . دابدالیانو دنامه ریښه هغو سپین پوستي اریایي قبیلې ته رسیږي چي په تاریخ کي یې د اپتل Aptal یا هفتل په نامه پېژنو. اروپایان دغو اریایي هپتالیانو ته سپین هونان وایي . د (هون ، هان ) اوښتی شکل اوس په پښتو کي ( خان ) دی چي خیني پښتانه یې د ( خون ) په بڼه هم تلفظ کوي . د ( هـ ) او ( خ ) داوښتون نور مثالونه هم سته . د ( خوارزم ) پخوانی ثبت د ( هوارزم ) په شکل هم لیدل سوی دی . عربو دې قبیلو ته[هیاطله] ویله . تاریخي څېړني ښیي چي دغه سپین پوستي اریایان د اوسني افغانستان سیمو ته تر راتګ وروسته ددې خای له لرغونو قبایلو ( پکهت ، پښت ) سره ګډ سوي دي . دهفتالیانو ژبه چي هر څه وه خو له پکتهانو سره له ګډون وروسته یې ژبه یومخیزه ( پښتو ) سوې ده . د اپتل قبیلې د ۴۰۰ م ) په شاوخوا کي په باختر او تخارستان کي یو پیاوړی دولت جوړکړ ، له ساسانیانو سره یې جګړې وکړې او کتیبې یې دکندهارپه شمال او ارزګان کي موندل سوي دي . ( ۱۱ ) دروایتي شجرو له مخي د ابدالـیو پښتنو نیکه ( ابدال ) نومېدئ او په اسلامي عصر کي پیداسوی دئ . د ترین زوی ، د شرخبون لمسی ، د سړه بن کوسی او د قیس عبدالرشید کودی و . د ژوند زمانه یې د ۴۴۰هـ ق شاوخوا ټاکل سوې ده . داسلامي دورې دغه ابدال نیکه که څېړي عیني موجودیت هم ولري نوبه د لرغونو اپتالیانو له زوزاتوڅخه یو متاخر سړی وي . څکه ابدالي قبیلې د اسلام

دمبین دین تر بعثت څه دپاسه دوه سوه کاله وړاندي پیاوړی دولت درلود . موږ درروایتي شجرو په ګرافیکه نخشه کي پر ډېرو داسي نومونو پېښېږو چي له پوښتنو خالي نه دي . حضرت بېټ نیکه په هیڅ ډول هغه بیټنی نه دي چي قوم یې په نامه ستــه . د پټې خزانې باباهوتك د هوتك قبیلې یو متاخر شخص دئ او په هیڅ راز یې باید هغه منبع ونه بولو چي د هوتکو پراخ قوم ورته منسوب دی .

ابدالیـانو ته د ( دراني ) لقب لوی احمدشاه بابا ورکړئ دئ . تر احمدشاهي عصر وړاندي یې ټولو منابعو نوم ابدالي یا اودالي راوړی دی .

## الکو ، اراکو ، الکوزي ، اراکوزي

درروایتي شجرو له مخي الکو د خیرك په اولاده کي د بارك او پوپل سکني ورور دی . خیرك دابدال زوی د ترین لمسی د شرخبون کړوسی د سړه بن کوسی او د قیس عبدالرشید کودی دی . د ژوند زمانه یې باید د ۷۸۰ هـ ق شاوخوا وبولو څکه د ورور ( پوپل ) د ژوند زمانه یې تاریخونو د ۷۸۰ هـ ق حدود ښوولي دي . ( ۱۲ ) یعني د اتمي هجري پېړۍ پای یا له نن څخه نژدې ۶۵۰ کاله وړاندي . دالکوزیو پښتنو ټاټوبی په مشخصه توګه د احمدشاهي کندهار شمال لویدیځ ته د ارغنداب ناوه ده . د زابل ولایت په جلدك او په فراه ولایت کي هم یو شمېر الکوزي اوسي خو اصلي مېنه یې د ارغنداب د رود غاړي دي . د ارغنداب حوزه په تاریخي لحاظ د اراکوزیا سیمه

ده . وايي کله چي مقدوني سکندر ( تولد يې ۳۵۶ ق م ) له اتيازرو لښکرو سره د اسيا پر لويه وچه بريد وکړ ، دريم داريوش ته يې ماته ورکړه ، د هخامنشي سلطنت پلازمېنه ( پايتخت ) يې وسوځله ، مخ يې پر خراسان ونيو ، دهرات تر نيولو وروسته يې دهيلمند ناوه او ورپسې د اراکوزي ناوه د اراکوزيانو له سخت مقاومت وروسته فتح کـــړه . د ۳۲۹ ق م پـه دوبـي کـي يـې د ارکـوزي سـکـنـدريـې ښـار د اوسني کندهار په شاوخوا کي جوړ کړ . ( ۱۳ ) د اراکوزيا سيمه په ريګويدا کي د ( سراسواتي ) او په اوستا کي د ( هراويتي ) په نامه ياده سوې ده . ( ۱۴ ) دغه اراکوزيان چي د ارغنداب پر غاړو اوسېدل او له مقدوني سکندر سره يې « سخت مقاومت » کاوه ، څوك وو ؟ داخلك د همدا ننيو الکوزيو اسلاف وو . د الکوزي او اراکوزي په نومونو کي د ( لام ) او ( رې ) اوښتون ( ابــدال ) پېښ دی . ( رې ) پـه ( لام ) اوښـتـې ده . ددغـه راز ابـدال نـوري بېلګي هم سته لکه : دېوار ــ دېوال ، غربېل ــ غلبېل ، قيطور ــ قيطول . ( د کندهار ښار لويديځ ته د سرپوزې د غره لـــوره څوکه « قيطول » نومېږي . مـــاته لا په ( رې ) او ( لام ) کي د ( لام ) ږغ لرغـــــوني ښکاري او په ( الکوزي ) کلمه کي د پای له خوا ( زی ) هغه سوفيکس نه بولم چي د نومونو په پای کي ورلوېږي او د ( زوی ) معنا ورکـوي لکه د ( بارك ) او ( محمد ) د نامه و پای ته چي ورلـوېدلی او ( بارکزی ) او ( محمد زی )

خیني جوړ سوی دی یعني د بارك زوی او دمحمد زوی . الکوزی او اراکوزی د شخص نوم نه بلکي د هغه جمعیت نوم دئ چي د اراکوزیا اوسېدونکي وو .

## اڅك ــ اڅکزي

په ابدالیوپښتنوکي اڅکزي هغه قبیله ده چي چي د ژوند ډېري لرغوني لاري چاري ، راشه درشه ، رسم و رواجونه ، دودونه و عادتونه یې خوندي ساتلي دي . دپښتنو د ایتنیکي څېړنو له پاره دا قوم خورا غني مواد لري . د دوی دنګ دنګ قدونه ، پیاوړي بدنونه ، غښتلي موټي ، ګردي مخونه ، مست اتڼونه ، غېږي او نور یې هر یو پخپل ذات کي د اریایي توب او لرغونتوب نخښي دي . ددې قوم دخپلونو نومونه هم خورا لرغوني علایم لري . د روایتي شجرو پر بنا اڅك او محمد دوه ورونه دي چي دبارك له اولادې ګڼل کېږي . د بارك دژوند زمانه د ۷۶۰ هـ ق شاوخوا اټکل سوې ده اوپه دې حساب باید د اڅك نیکه وخت تر دې وروسته کلونه وي او تر ۸۰۰ هـ ق وروسته کلونه یې وبولو . دا خبره مې لا باید دمخه کړې وای چي د یوې قبیلې د جوړښت د پیل له پاره دغه شان دقیقه نېټه یا کال ټاکل پخپله د علم له موازینو سره سر نه خوري . د اڅك د پیدایښت کلونه که د ۸۰۰ هـ ق حدود ومنو نو دا د اسلامي عصر هغه دوران دئ چي اسلامي تفکر د مسلمانانو اوپه تېره بیا پښتنو د ژوند په ټولو اړخونو کي ژوري ریښې ځغلولي دي . پر ژبه یې د عربیت ژوره اغېزه مسلطه سوې

ده . نومونه يې عربي ، اصطلاحات عربي ، هرڅه عربي سوي دي .داخبره دمنلو نه ده چي د اسلامي مجد وعظمت په دغسي يوه دوران کي دي د يوه مسلمان قوم نومونه غير اسلامي يا غير عربي وي او مسلمان اڅك دي پر خپلو زامنو ( ګجن ) و ( بادين ) نومـــــونه کښېږدي ، لمسی دې د ( څول ) ، کړوسی دې د ( سدی ) ، کـــــــوسی دې د ( پايك ) او کودی دې د ( خودك ) په نامه ونوموي .تاسي ته به زه د يوه اڅکزي شاعر شجره وړاندي کړم اوتاسي به دا ټول غير عربي نومونه پکښې ووينئ . داشاعر ملا عبدالسلام اشېزی نومېږي او په اولس کي په سلام بابا مشهور دئ . نوموړی د ملاحبش زوی هغه د ملاصمد هغه دملا برت هغه د جمال هغه د ګلي هغه د غازي هغه د پيرعلي هغه د خودك هغه د پايك هغه د سدي هغه د څول هغه د ګجن هغه د اڅك زوی دی . ( ۱۵ ) ددې شجرې د پای شپږ نومونه خوپه څرګند ډول تر اسلام دمخه نومونه دي ( ۱۶ ) . که درې پښته يوه پېړی وګڼو نو شپږ پښته دوه سوه کاله کېږي او ددې معنا به داوي چي د اڅك زيږېدنه بايد لږ تر لږه دوه سوه کاله تر اسلام وړاندي وبولو . روايتي شجرو ته د نيتې ټاکونکو د هغه عمر شپږ سوه کاله کړي دی . په دغه موده کي له يوه فرد څخه داڅکزو د دومره پراخ اولس جوړېدل ترعقل وتلې خبره ده . ما د يوه اڅکزي شاعر شجره څکه د بېلګې له پاره راوړه چي ددې قوم پر شجرو زيات باور کېدلای سي . په ابداليو پښتنو کي د اڅکزو قبيله

دنسبي اړيکو په خوندي کولوکي تر نورو قبيلو ډېره پابنده ده . په دوي کي دقبيلي پوښتنه اساسي سوال دی . له نابلده مېلمه څخه تر روغبړ وروسته لومړی پوښتنه داده چي څوك يې ؟ يعني په قوم څوك يې ؟

داخك د ژون زمانه ډېره قديمه ده . د شجرو جوړوونکو د کجن او اځك تر منځ د پېړيو پېړيو فاصله غورځولې ده . ښاغلي دوکتور عبدالرازق پالوال پخپل درانه اثر ( دپښتنو نوی پخوانی تاريخ ) کي د يوناني آثارو پر بنسټ د ( ارځك ) شاهانو په باب( چي مراد يې اځك شاهان دي ) ډېر لرغوني شواهد او تازه و بکر معلومات ورکړي دي . ددغه درانه او ګران کتاب دوهم ټوك چاپ سوی دی ( ۱۹۹۴ م ) پښتانه ددغه اثر د نورو ټوکونو د خپرېدو لار څاري .

## بړيځ ـ پروټ ـ ډاسو ـ اپرېدي

د ارياپانو په لرغونو سرودونو ( ويدونو ) کي موږ د ارغنداب په ناوه کي د پښي ، ډسه ، پراوته او بريسه قبيلو نومونه مومو چي له دوی څخه همدا نن پښي په سيوی او کندهار کي سته ، بريسه په يقين سره د بړيځ قوم نوم دی ، پروټ د الکوزيو يو ښاخ دئ ، د اپرېديو نوم د اپاريتي په بڼه ثبت دی او په سلېمانخېلو کي د ډاسو ( ډسه ) په نامه يوخېل سته ( ۱۷ )

## ساك ـ سهاك ـ ساکزی ـ اسحاق زی

له تاريخي خېړنو څخه څرګندېږي چي ساك قبايل د

آمو په شاوخوا کي ترمیلاد شپږ سوه کاله مخکي اوسېدل . وایي لوی کوروش د سیستان د فتح پر وخت همدغه ساکان د هغوی د ښوخدمتونو له امله ( نیك کردار ) بللي او نازولي یې دي . اروانښاد علامه حبیبي لیکي کله چي دغه کوچي ساکان صحرانشین سول دباختر په سیمو اودآمو سیندپه جنوب کي له پښت قبیلې سره گډ سول او دساکه نوم ددغو قبایلو په نومونو کي ځای سو . لکه په زابل او کابل کي د سهاك او په هیلمند کي دساگزي په پښتنه قبیله کي همدا نوم سته . له ساکانو څخه عبدالله محمد بن صالح ساگزي په سیستان کي د یعقوب لیث صفار پرخلاف پاڅون وکړ او مات سو ( ۲۵۹ هـ ق ) مشهور انگرېزافغان پوه سر اولف کېرودگندهارا دساك واکمنانو په نومونو کي خورا ډېر پښتو مشابهتونه موندلي دي . ( ۱۸ ) اروانښاد دوست شینواری خولا ساکان د پښتون قام په جوړښت کي یو اساسي عنصر گڼي . دده په عقیده د پښتانه پـه خته کي د ( سلم ، ساك او سامي ) عناصرو ببلگې سته . ( ۱۹ )

په پښتنو کي دعربي فرهنگ له خپرېدو سره سم خورا ډېري پښتو کلمې په عربي بڼه او وروسته په پارسي شکل واوښتې لکه صرود ( سردسېر ) ، جروم ( گرمسیر ) مستنج ( مستنگ ) ، سجستان ( ساگزستان ) ، سجزي ( ساگزي ) ، قهستان ( کـــــوهستان ) ، میر واعظ ( میرویس ) ، ضحاك ( سهاك ) ، لهوگرد ( لوگر ) فوفلزایي ( پوپلزی ) ، طوخی ( تـــــوخی ) ، صدوزی

( ســـــــدوزی ) ، ارغسان ( ارغستان ) ، سفید روان ( سپېروان ) او نور. په دې ډول له سهاك څخه ( ضحاك او اسحق ) جوړ سو ( لکه له ښرخبون او خرښبون څخه چې يې شرف الدين او خيرالدين جوړ کړي دي ! ) او د ساګزو قبيلې نوم په اسحق زايي واوښت . دا لرغونې قبيله چې موږ يې د موجوديت څرك ( ۲۵۰۰ ) کاله وراندې لرو ، د روايتي شجرو د مسخ کوونکو له خوا دوه څايه سوې ده . يوه برخه يې د سړه بن په اولاده کې د ابدال له لارې د پنج پای په ګروپ کې شامله سوې او بله يې د سهاك ولد ابراهيم ولد بي بي متو بنت بېټ بللې ده ( ۲۰ ) که د ابدال زمانه د ۴۴۰ هـ ق شاوخوا ومنو نو د سهاك = اسحق د ژوند عصر بايد د اوومي هجري پېړۍ سر وي او په دې توګه به مو د يوې لرغوني قبيلې د عمر لږترلږه اتلس سوه کاله عمر خوړلئ وي .

د پنج پای له ګروپ سره د ساکانو يو ځای کول ماته مصنوعي ښکاري . د کندهارله درانيو څخه داخبره اورېدل کېږي چې د پنج پای ګروپ قومونه کله ځانونه په درانيو ګڼوي کله په غلجيو .

**********

******

****

**

*

## د دریم څپرکي لمنلیکونه

( ۱ ) نومیالی ـ محمدانور ـ دپښتنودتولنیزتاریخ مبادي ـ ۳۷ مخ ـ مسکو ـ ۱۹۹۰ م

( ۲ ) په ۱۶۲۰ م کال کي په اتلانتیک سمندر کي یو بېساري توپان پېښ سوی و چي ۶۶ ورځي یې دوام درلود . له دغه توپان څخه یوه کوچنۍ بېړۍ راووته چي سپرلي یې مذهبي مبلغین وو . دغو مبلغینو په شمالي امریکا کي یوه ټولنه جوړه کړه چي زوزات یې د امریکایي کلتور له مخي زمونږ دخینو پښتنو په شان ځانونه « ستانه » بولي .

( ۳ ) حبیبي ـ پوهاند عبدالحی ـ تاریخ مختصر افغنستان ـ ۱۴۱ مخ

( ۴ ) رشاد عبدالشکور ـ لودي پښتانه ـ ۱۳ مخ

( ۵ ) تاریخ سلطانی ۲۳ مخ ، تواریخ خورشید جهان ۶۷ مخ ، لودي پښتانه ۱۲ مخ د تاریخ فرشته دلومړي ټوک ۱۸ مخ په حواله .

( ۶ ) حبیبي ـ پوهاندعبدالحی ـ تاریخ مختصر افغانستان ـ ۱۵۷ ـ ۱۵۸ مخونه .

( ۷ ) شینواری ـ سرمحقق دوست ـ پښتانه څوک دي ؟ ـ ۶۸ مخ پېښور ـ ۱۹۹۸ م

( ۸ ) نومیالی ـ محمد انور ـ دپښتنو د ټولنیز تاریخ مبادي ـ ۴۶ مخ ـ مسکو ـ ۱۹۹۰ م

( ۹ ) تړی ـ حبیب الله ـ پښتانه ـ شپږ مخ ـ پېښور ـ ۱۹۹۹ م

( ۱۰ ) سراولف کارو ـ پښتانه ( پټانز ) ـ پښتو ژباړه ـ ۲۵ ـ ۲۶ مخونه ـ پېښور ـ ۱۹۹۹ م

( ۱۱ ) حبیبي ـ پوهاند عبدالحی ـ تاریخ مختصر افغانستان ـ ۲۳۴ مخ

( ۱۲ ) تاریخ مختصر افغانستان ـ ۲۳۹ مخ ، پښتانه دتاریخ په رڼاکښې ۱۲۷۲ مخ

( ۱۳ ) تاریخ مختصر افغانستان ـ ۴۰ مخ

( ۱۴ ) ریګویدا د ویدي سرودونو یو کتاب دی . ویدي سرودونه له نن څخه نزدې څلورنیم زره کاله وړاندي ویل سوي دي . ویونکي یې هغه اریایي قبایل وو چي د آمو سیند په شمال کي اوسېدل او خپله مېنه یې ( اریاناویجه ) بلله . ( اوېجه اوس لا هم د کندهـــــــار په لهجه کي د ( سرزمین ) په معنا ژوندي او مستعمله کلمه ده . ) اریایي مدنیت د ویدا په څلورو کتابونو کي منعکس سوی دی . له دغو څلورو کتابونو څخه د یوه نوم یې ریګویدا دی نور دري یې سام وید ، اتهرواوید ، یجوروید نومېږي . ریګویدا یې ترټولو قدیم دئ .

اوستا بیا د زردشتي مذهب مقدس کتاب دی چي دوې لویي برخي لري . په لومړۍ برخه کي یې دغه لاندي کتابونه راغلي دي : یسنا ، ویسپرد ، وندیداد . او په دوهمه برخه یې دوې څانګي لري : خورده اوستا او یشتونه د ( یشت ) معنا د ( ستایني سرود ) ده . که د اوستا لومړۍ او دوهمه برخه په پام کي ونه نیسو ، نو په مجموع

کي گويا پنځه کتابه کېږي : يسنا ، ويسپرد ، ونديداد ، يشت او خورده اوستا .

( وګورئ : افغانستان در شاهنامه د اروابناد احمدعلی کهزاد ليکنه ـ ۹۳ مخ ـ کابل ـ ۱۳۵۵ ش )

( ۱۵ ) ملا عبدالسلام اشېزی ـ د مقدس خان معصوم ليکنه ـ پښتو اکاډمي ـ بلوچستان ـ ۱۹۸۷ م

( ۱۶ ) په وروستيو څو لسيزو کي پر پښتنوکوچنيانو باندي د غير عربي نومونو ايښوول باب سوي دي . زموږ زلمي پښتانه کوښښ کوي پراولادو باندي پښتو نومونه کښېږدي . دغه تمايل د وروستيو لسيزو محصول دئ .

( ۱۷ ) حبيبئي ـ پوهاند عبدالحی ـ تاريخ مختصر افغانستان ـ ۱۰ مخ .

( ۱۸ ) پورتنی اثر ـ ۵۸ مخ

( ۱۹ ) شينواری ـ سرمحقق دوست ـ پښتانه څوک دي ؟ ـ ۱۹ مخ ـ پېښور ـ ۱۹۹۸ م

( ۲۰ ) خلاصه الانساب ـ ۱۲۶ مخ

**************

************

**********

********

******

****

*

# څلرم څپرکی

## غرزي ـ غلزي ـ خلجي ـ غلجي

په پښتنوکي غلجي قبایل هم دشمېر له مخي او هم په تاریخ کي دخپل ځانګړي نقش له رویه د یادوني وړ موقعیت لري او همدا علت دی چي ما په دې لیکنه کي هغوی په یوه بېل څپرکي کي راوړل . له دې قبیلې څخه لودیانو د څلرمي هجري پېړۍ په سر کي په ملتان کي د یوې درنې پاچهۍ تاداو کښېښود چي نیمه پېړۍ یې دوام وکړ او د غزنوي سلطان محمود له خوا په ۴۰۱ هـ ق کي ورانه سوه . تردې وروسته په هند کي د خلجي ( غلجي ) شاهانو اوږده دوره پیل کېږي چي پیل یې په ۱۲۰۶ م کي و او څه دپاسه درې سوه شل کاله یې دوام وکړ. ( د خلجي او غلجي په باب به وروسته وږغېږو ) د نهمي هجري پېړۍ په نیمايي کي لودیانو د دوهم ځل له پاره د شاهوخېل لودي سلطان بهلول په لاس د هندوستان په شمال ( ډیلي ) کي د یوه پرتمین سلطنت بنسټ کښېښود چي تر اتیا کاله عدل وروسته د مغول بابر په لاس ړنګ سو . تر بابر وروسته بیا ددغو قبایلو خپلوانو ( سوریانو ) د سلطان العادل سوري شېرشاه په همت پر هند باندي دپښتنو واکمني ټینګه کړه

چي د مغول همايون په لاس چپه سوه او تر هغه وروسته بيا وېنوچي په کندهار کي دحاجي ميرويس نيکه په قيادت ملي غورځنګ پيل سو ( ۱۱۱۹ هـ ق ) پښتانه يې واکمنی ته ورسول . دا واکمني اته دېرش کاله وروسته د افشار نادرپه لاس نسکوره سوه . لکه وړاندي چي مي وويل ددې قبايلو په باب زه ځکه لېږڅه په تفصيل رغېږم چي په روايتي شجرو کي همدوي زياتره د مناقشې ور ګرځول سوي دي . ددوی په باب ظالمانه قضاوتونه سوي دي . دپښتنو دروايتونو له مخي دغلجيو رېښه د بېټ نيکه لور بي بي متو ته رسېږي. بي بي متو په غوري حسين ( ۱ ) واده وه . په مخزن افغاني کي د متو او حسين د واده په باب د مجمع الانساب په حواله يوه افسانه ليکل سوې چي وروسته يې نورو تاريخونو ته هم لارکړې ده ( ۲ ) افسانه داسي ده :

د وليد بن عبدالملك بن مروان دخلافت په وخت دده سپه سالار حجاج بن يوسف ثقفي د خراسان او غورستان د نيولو په نيت له يو لوی لښکر سره راوخوځېد . په غور کي د حجاج په راتګ سره لويه ګډوډي راغله . مخوري کورنی او د نامه کسان له کور و کلي ووتل په هغو کي د حسين په نامه يو ځوان د وطن پرېښوولو ته مجبور سو. ( د حسين د نسب شجره يې د غور حاکم سلطان بهرام ته رسولې ه او هغه يې د سلطان معزالدين محمد بن سام غوري له اولادې بللی دی . وايي چي دڅلرم خليفه حضرت علی کرم الله وجهه له خوا سلطان بهرام ته دغور د حاکم په توګه فرمان

صادر سوی و ). په افسانه کي راغلي دي چي حسين نامی دکسي په غره کي د شيخ بېټ نيکه کورنۍ ته پناه ورووړه . شيخ بېټ يې په تندي کي د عالي نسبی او نېك فطرتی نخښي وليدلې . په کور کي يې ځای ورکړ او د کهاله محرم يې وګاڼه او د زوی په شان چلند يې ورسره وکړ . څه موده وروسته د حسين او د شيخ بېټ د لور ( متو ) ترمنځ مينه پيداسوه او د متو د مور وپلار په پټه سره کور و کهول سول . متو حمل واخيست . مور يې د چارې په فکر کي سوه د پلارسره يې خبره طرحه کړه او ځني ويې غوښتل چي د هلك و نجلی نکاح وتړي . پلار يې د هلك د اصل ونسب د معلومولــــو له پاره يو سړی چي ( کاغ دوړ ) نومېدی د حسين له يوه ليك سره چي د خپلي کورنۍ په نامه يې کښلی و ، غور ته ولېږه . کاغ دوړ په غور کي د حسين دپلار و نيکه څرك ويوست او تر راتګ وروسته يې شيخ بېټ ته ډاډ ورکړ چي هلك عالي نسبه شهزاده دی . شيخ بېټ د خپلي لور و حسين نکاح وتړله . متو ته خدای زوی ورکړ . نيکه يې له دې امله چي هلك و نجلی دده بې سلا يوځای سوي وو ، پر مـــــاشوم باندي ( غلزوی ) نوم کښېښو يعني د غلا زوی . دا نوم وروسته غلزی ، غلجی سو . ( ۳ ) تاريخ سلطاني دې افسانې ته نېږه هم اېښې ده او دا پېښه يې په پنځه سوه هجري کي بللې ده . ( ۴ ) حسين يې د شهزاده سام غوري زوی بللی دی او له غور څخه يې د هغه د راوتلو علت غورته د غزنوي لښکرو

ورتګ ګڼلی دی . دا افسانه په مخزن افغانی کې پیل سوه او تر ننه پوري ډېرو کتابو اخیستې ده . زموږ له پیاوړو استادانوڅخه پوهاند رشادهغه (مضحکه وجه تسمیه ) بللې ده ( ۵ ) له دغو یادونو سره سره به زه اوس ددغې افسانې په باب یو شمېر دلایل وړاندې کړم او ګران لوستونکې به وګوري چې دغه افسانــــــــوي روایت او « عامیانه اشتقاقونه » څومره له حقیقته لیرې دي .

ــ لومړی داچې د غوري پاچهانو په هغه لست کې چې علامه حبیبي په خپل کتاب ( تاریخ مختصر افغانستان ـ ۱۶۶ مخ ) کې راوړی دی ، د سلطان بهرام په نامه څوک نسته . زما په ګومان ددغې افسانې طراحانو د غزنوي شاهانو د لړۍ پر یوه تن ( بهرام شاه بن مسعود سوم ) بــــــاندې یې د ( غوري ) لقب ور زیات کړی دی . دا امکان زه څکه وارد بولم چې د پښتنو داسراییلیت د نظریې د جوړولو په ترڅ کې یې هم د اصفیا په اولاده کې د افغنه نوم ور ځای کړی دی .

ــ د حضرت علی ( ك ) شهادت په ۴۰ هجري قمري کې پېښ او سلطان معزالدین غوري د شپږمې هجري پېړۍ سړی دی . دده پــــــه اولاده کې سلطان بهرام نامی ؟ نه د حضرت علی ( ك ) له خوا د فرمان صادربدل له تناقضه ډك روایت دی . څکه د حضرت علی د شهادت او د سلطان معزالدین د واکمنۍ تر منځ د شپږو پېړیو واټن پروت دی . ګویا د اسلام څلرم خلیفه تر خپل شهادت شپږ پېړۍ وروسته

يو چاته فرمان صادورويِ ! ) .

ـ مخزن افغاني خو د متو او حسين د نکاح کېدلو وخت نه رابنيي خو تاريخ سلطاني لکه وراندي چي مو ولوستل ، په صراحت سره وايي چي داپېښه په پنځمه هجري پېړۍ کي سوې ده . په داسي حال کي چي وليد بن عبدالملك په ۹۶ هـ ق کي مړدی او د حسين له کوره وتل او دکسي غره ته تلل بايد په لومړۍ هجري پېړۍ کي شوول سوې وای . متو د قيس لمسی ده . قيس په ۴۰ يا ۴۱ هـ ق کي مړ دی او په دې ډول خو اول د نيکه او لمسی تر منځ زمـــــاني فاصله ( ۴۵۰ ) کاله ده چي د عقل په حکم ممکنه نه ده . بل حسين د لومړۍ هجري پېړۍ په پای کي له کوره وتلی خو واده يې درې پېړۍ وروسته کړی دی . نه پوهېږم چي دا مساله به ځرنګه تشريح سي ؟

ـ وايي شيخ بيټ پخپل وخت کي په تقوا او نېکي مشهور و د لور په ورکړه کي د نورو پښتنو په شان ډېر محتاط و . د خېښۍ په وخت کي ورته د اصل و نسب مسالې زيات اهميت درلود او له همدې امله يې د حسين غوري د پلار ونيکه د معلومولو له پاره کاغ نامی دوړ ته له کسي غره څخه د غور تر لتو پوري د اوږده سفر ماموريت ورکړ . آيا ددغسي يو شخص څخه داهيله کېدای سي چي د خپلي کورنۍ لمن دي په خپل لاس پورته کړي او پر لمسي باندي دي د ( غل زوی ) نوم کښېږدي ؟ په پښتنوکي همدا اوس پر ناموس باندي د تېري او ناروا داغ جزا مرګ دی . آيا دا

خبره به د ببېټ نيکه په وخت کي چي اسلام او پښتونولي تر نن سل چنده ټينګه وه ، د يوه روحاني مقتدا په باب د منلو وړ وي چي خپله لور داسي يوه شخص ته په نکاح ورکړي چي دده کورنی ته يې پېغور اړولی وي ؟ هيڅکله نه .

ـــ ددې افسانې بل تناقض د ( کاغ دوړ ) مساله ده . که کاغ نامی په رشتيا سره په قوم ( دوړ ) و ، نو د دوړ قوم لومړی نيکه بايد تر ببېټ نيکه دمخه يا يې همعصر وي . په داسي حال کي چي د روايتي شجرو په روايت خو ( دوړ ) په ( شيتک ) کي شامل دي ( نوري څانګي يې تنې او بنوځي دي ) شيتک د ککي زوی ، هغه د کرلاڼ زوی او هغه د ببېټ سره په يوه ليکه کي راغلی شخص بنوول سوی دئ . د پورتني روايت له مخي خو لمسي تر نيکه دمخه ژوند کاوه !

ددغو تناقضاتو حل په هغه چا اړه لري چي د غلجيو په باب پر دغه افسانوي روايت باندي ګروهمن وي .

## غلجي څوک دي ؟

د غلجيو د نامه په توضيح کي نني پوهان د نوو څېړنو په رڼا کي ټول په يوه خوله دي او هغه دا چي دا نوم غرزی ( کوهزاد ) دی . د غرزي کلمه ورورو په غلجي اوښتې ده . د ( زې ) او ( جيم ) د اوښتون ډېر مثالونه سته ( ژوند ـ زوند ـ جوند ، ژبه ـ زبه ـ جبه ، ژرنده ـ زرنده ـ جرنده )

علامه حبيبي د تـوماس چك لـه خولې وايي چي پـه لرغـــــــونې باختري دري کي ( ګر ـ Gar ) غره ته وايي

اوړ آمو سیند د لوري خوا د غرنیو سیمو آریایي اوسېدونکي ( غرچه ) نومېدل . غرڅه او غرڅني په ننی پښتو کي مروجي کلمې دي او د غره مېړونو ته وايي . غر د یوې لاحقې په توګه دپښتانه له نامه سره تړلې کلمه ده . عربو د غور پښتانه پاچهان ( ملوك الجبال ) یعني ( د غرونو شاهان ) بلل . د غزنوي دربار مشهور مدیحه ویونکي شاعر ابوالقاسم فردوسي پخپل تاریخي شهکار ( شهنامه ) کي د زابل په غرو کي د افغانانو د یو مشر او پهلوان اوږد داستان لري . دا مشر ( کك کوهزاد ) نومېدئ چي په قوي احتمال سره یې (غرزی کك ، غلجی كك ) بللای سو . د شهنامې د ملحقاتو روایت داسي دئ

چنین گفت دهقان دانش پژوه
مر این داستان راز پیشین گروه
که نزدیك زابل بسه روزه راه
یکی کوه بد ، سرکشیده به ماه
بیك سوی او دشت خرگاه بود
دگر دشت ، زی هندوان راه بود
نشسته درآن دشت بسیار کوچ
زاوغان ولاچین و کرد و بلوچ
یکی قلعه بالای آن کوه بود
که آي حصن و از مردم انبوه بود
مرآن حصن را نام مرباد بود
ازوجان نابخردان شاد بود

بدژ در، یکی بد کنش جای داشت
که در رزم با اژدهـــا پای داشت
نژادش زاوغان سپاهش هـــزار
همه ناوك انداز و ژوبین گـــزار
ببالا بلند و به پیکـــــر ستبر
به حمله چو شیر و به پیکار ببر
دورانش بمـــــانند ران پیل
گه رزم جـوشان تر از رود نیل
به نیروجـــداکردی از کوه کمر
گـــریزان ز رزمش بدی شیر نر
چو پیکار جستی ز مردان مرد
ز مـردان به اوردی از گرز گرد
ورا نــــام بودی كك کوهزاد
بگیتی بسی رزم بودش به یاد
هزار و صدوهژده اش سال بود
بسی بیم ازو در دل زال بود ( ۶ )

د اروابناد استاد احمدعلی کهزاد په نظرد « مرباد » غر په فراه کي واقع دی او « که نزدیك زابل بسه روزه راه » داسي تعبیروي چي زابل یوه پراخه سیمه ده او په دې ځای کي له زابل څخه مراد د هیلمند او ارغنداب غاړي دي . نوموری استاد زیاتوي « دشت خرگاه عبارت از سرزمین پهناوریست که علی العموم کوچی ها درآن مستقر بودند و خیمه ها و غژدی ها و خرگاه های خود را درآن پهن دشت

برپا می نمودند . راهی که بطرف هندوان رفته بود ، امکان دارد که از طرف جنوب در راه قندهار و چمن و کویته جانب (هند ) میرفته ، ولی امکان دیگر هم موجوداست که راه مذکور ازطریق قندهار و غزنه به مرکزکابلستان که درآن وقت حصهٔ زیاد آن پیروان هندوئیزم بودند ، کشیده شده باشد » ( ۷ )

د « دشت خرگاه » موقعیت موږ ته دا راښیي چې دا دښت د اوسني زابل و غزني له پراخو دښتو سره خرمه پروت و او تر دا نن پوري لاهم د غلجي کوچیانو کړدۍ پکښې پلني وي . د شهنامې د روایت له مخې ( کک کوهزاد ) افغان و . په دې باب موږ یو شمېر نور بیتونه هم لرو چې د کک افغانیت ( پښتونوالی ) ښې څرګندېږي . فردوسي د رستم نکل کوي او وایي چې نوموړی یــوه ورځ « بازرګاه » ته ځي او دلاوریانو له خولې د ( کک کوهزاد ) د غښتلتوب بیان داسې اوري :

یکی گفت ای نامــــور پهلوان
دل کارزار و خـــــرد را روان
نهنگ دمــــانست و شیر ژیان
بـه نیروی او کس نبسته میان
نژادش ز اوغان سپاهش بلوچ
ابردشت خرگاه بگزیده کوچ

.........

......

کك کـــوهزاد اژدهای نر است
زگرشسپ و ار سام جنگی تر است

.........

دگرآنکه در کـــوه با آن دلیر
هـزاران جنگی همه همچو شیر
به مردی فزونند هر یك ز کك
بـــود کك ز پیکارایشان سبك
هـــزاران سواران افغان گروه
ز لاچین دلیران ابر گـــرد کوه

رستم چي دا بیان اوري له خبنمه سره تاوېږي او قسم خوري چي د کك چاره به کوي .

ندارم درنگ امشب ایدر زکین
مگر سوی اوغان و خرگه زمین

.............

سوی دشت خرگاه تازیم زود
ز افغان و لاچین بر آریم دود

زه نه غوارم د شهنامې ټول داستان دلته رانقل کړم . مقصد مي دادئ چي (کك کوهزاد ) د شهنامې په استناد افغان ـ اوغان و ، د ( دشت خرگاه ) پښتانه يې عزیزان وو او په لښکر کي يې په زرو ( زرگونو ) افغانان شامل وو. (کك ) چي افغان سو نو په یقین سره ویلای سو چي د ( کوهزاد ) لقب همدغه ( غرزی ) دئ چي وروسته غلزی ـ غلجی ـ خلجی سوئ دئ . د ( اك ـ ak ) لاحقه په نورو پښتني

قومونوکي هم سته لکه ختهك ، شيتك ، هوتك ، اځك ، بارك او نور .

د روايتي شجرو له مخي غرزی = غلجی د ببټ نيکه د لور ( بي بي متو ) زوی ګنهل سوئ او د ژوند زمانه يې تراسلام وروسته وختونه دي په داسي حال کي چي د همدې شخص بيان د شهنامې په استناد تر صدر اسلام ډېر وړاندي په فولکوريکو داستانو کي ځای نيولئ دئ او دې خبري ته مو بايد پام وي چي فولکلوريك داستانو نه که د عقل و درايت ملاتړ وکټي نو بيا د ثقه اسنادو ځای نيولای سي . روايتي شجرو چي د غلجي په اولاد کي د توران ، بولر ، بارو ، بابو ، درخی ... نومونه راوړي دي ، پخپله ددې شاهدي ورکوي چي دا نومونه تر اسلام ډېر وړاندي لرغوني نومونه دي .

نسبي شجرو غلجي قبايل په ( وصلي افاغنه ) کي راوستي دي . ددې له پاره چي ددې مطلب اساس ښه څرګند سي ، لازمه ده چي پردغه برخه يوڅه ورغږېږم :

## اصل و وصل :

قبيلې او قومونه دانسانانولوی لوی جمعيتونه دي او دجوړښت جريان يې يوه ډېره اوږده زمانه نيسي .چي د پيل ټکی معلومول يې يوه څه مشکل کار دئ . يوه شخص ته د لويو قومونو د مبداء رسول زياتره له علمي معيارو سره سرنه خوري . ښتانه چي خپله نسبي شجره بيانوي ، وايي پلانی د پلاني زوی دپلاني لمسی د پلاني کړوسی د

پلاټي کوسی د پلاټي کودي ... او بالاخره د پای ټکی یې یوې لویې ټولی ( پوپل ، اڅك ، ختك ، اپریدی ، .... ) ته رسوي . تر لویې قبیلې پورې د نسب سلسله د افرادو له لارې بشپړیږي . د روایتي شجرو تېروتنه داده چې دغه لویې قبیلې یا قومونه یې د شخص په توګه منلې دي او داسې یې انګېرلې ده چې ګویا پوپل ، ختك ، اڅك ، اپریدي ... اشخاص دي په داسې حال کې چې هغه اشخاص نه بلکې د افرادو لویې ایتنیکي مجموعې دي چې ټوله بیا د « پښتون » په نامه په یوه لوی واحد کې د ملي یووالي درجې ته رسېدلي دي . او لکه ورانديي چې مې وویل ددغو لویو ایتنیکي واحدونو جوړېدل د خورا ډېرې اوږدې زمانې محصول دئ . دپښتنو په دا اوسنی سیمه کې د تاریخي حوادثو له مخې څوك دا اټکل کولای سي چې دلته په خورا لرغونې زمانه کې د انسانانو یوه ټولی د « ملي توحید » یوې داسې مرحلې ته رسېدلې وه چې نوري ټولی او جمعیتونه یې ځان ته راجذبولای او په ځان کې منحلولای سوای . ددغه جذب او انحلال مفهوم په روایتي شجرو کې د « وصل » یا « وصلي » په نامه بیان سوی دی . وصل او ادغام یوه داسې عملیه ده چې مثالونه یې د نړۍ په نورو قومونو کې هم موندل کېږي . داستاد محمد انور نومیالی په عقیده « ... په لرغوني تاریخ کې دلته یو شمېر لومړنی قبیلې ډېرې وختې د ایتنیکي جوړښت یا تکوین یو پاخه او په ځان پوره قبیلوي نظام ته رسیدلي دي . بیانودغه نظام

د انضباطي او انتظامي ارزښتونو له برکته چي پخپل وخت کي يې زياتي اجتماعي او اقتصادي ښېګني درلودې ، په ليري او نيژدې ګاونډيتوب کي يې هر څوک خان ته راجلبوله او په دوی ورګډېدله . د ظلمونو له مرکز څخه فراره او د شرقي استبداد له دولتو څخه بېزاره پرګني چي ددوی په ګاونډيتوب کي يې پناه موندله ، د دوی د ژوند لاره يې غوره کوله . » ( ۸ ) پر « فراره و بېزاره پرګنو » سربېره له نظامي فتوحاتو سره سم ځيني مهاجم جمعيتونه او افراد هم په نيول سويو سيمو کي د تل له پاره ميشته سوي دي چي د اسلام له خپرېدو وروسته په پښتنو کي د عربي عناصرو منحلېدل يې ښه مثال کېدلای سي . دغو عناصرو چي اوس د پښتنو ستانه دي ، خپله ژبه او کلتور سره له دې چي د مذهبي تقدس ملاتړ هم ورسره ملګری و ، له لاسه ورکړی دئ . په کندهار کي يو شمېرسپېڅلي پښتانه همدا نن څانونه ( تاجك ) بولي او ځيني يې ( بلوڅ ) . خونه د يوه تاجکي زده نه دبل بلوڅي او نه يې راشه درشه د تاجك و بلوڅ ده .

کله چي څوك په پښتنو کي د « وصل » عمليه ګوري نو ويني چي يو وخت هفتليان ـ اپتلان ددې سيمي له بومي اوسېدونکو ( پکتهانو ) سره يو ځای سوي او ( ابداليان و غلجيان ) ترې جوړ سوي دي ( ۹ ) بل وخت د سامي توکم ځينو قبيلو خپله بقا له پښتنوسره په يوځای کېدلو کي موندلې ده او څانونه يې پکښي منحل کړي دي او بل وخت

بیا د منځنی اسیا د پراخو سیمو اوسېدونکو ساکانو خپل هر څه له خپلو کاونډیو پکتهانو سره ګډ کړي دي . د همدغو طبیعي عملیود څېړلو په نتیجه کي ننیو پوهانو داسي انګېرلي چي د پښتني ټولني د جوړښت مهم توکي ( سلیمانیان ، ساکان او سامیان ) دي ( ۱۰ ) د سړي سینې خبره داده چي ددې ټولو عناصرو نخښي د پښتنو په سره یو موټي ترکیب کي موندل کېدلای سي . لرغونو کتابو او د هغو په پیروی ځینو ننیو څېړونکو چي ددغه ادغام او وصل ځیني نخښي په پښتنو کي موندلي دي ، ددې پر ځای چي د وصل د عملیې څرنګوالی دي یې څېړلئ وي ، ټول پښتانه یې هغو ته منسوب کړي دي . همدا علت دی چي ځینو څېړونکو پښتانه بني اسراییل بللي ، ځینو تاتار او ځینو منګولیان و ....

د « وصل » له طبیعي عملیې څخه د سیاسي واکدارېو او ملاحظاتو په ګټه ناروا استفادې هم سوي دي او ددې پرځای چي دغه عملیې ته د یوې عیني او عادي واقعې په توګه کتل سوي وای ، د یوه قوم د تذلیل او د بل د تجلیل له پاره کار ترې اخیستل سوی دی . ( ۱۱ )

........

.......

.....

....

..

مورته منسوب قومونه تر نورو لرغوني دي :

شرقي ملتونه د قومي لرغونتوب مسالې ته اهميت ورکوي . په دې بحث کي له لرغونتوب څخه زما هدف دانه دئ چي گويا لرغوني قومونه پر نالرغونو لوړ دي يا دا د قومونو له پاره يو امتيازدئ . دا د بشري انکشاف يوه غير ارادي عمليه ده چي ځيني انساني ټولې وړاندي او ځيني وروسته دقوم درجې ته ورسيږي . زما مقصد د ځينو هغو تاريخي حقايقو بيانول دي چي په پخوانيو کتابو کي له پامه اچول سوي وه . له دغو تاريخي حقايقو څخه يو هم د مورني اصالت په دوران کي د قبيلو او قومونو منځ ته راتگ او د مور نامه ته دهغو منسوبېدل دي .

د نړۍ په تاريخ کي داسي شواهد موندلای سو چي دخينو بشري ټوليو جوړښت د مور په نامه پيل سوي وي او د نامه ريښه يې د ميندو له نومو سره تړلې وي . دا دبشري انکشاف او تکامل هغه پړاو دئ چي د ټولني د اقتصادي او ټولنيزو چارو په سرته رسولو او پرمختيا کي د ښځو رول تر نارينه زيات وي . کله چي د اقتصادي او اجتماعي ودې له امله په ټولنه کي د نارينه غلبه ټينگه سوه ، دلته نودنسب نوم هم د مور له نامه رابېل او په پلار پوري وتړل سو .

په پښتنو کوچيانوکي نن ورځ لا هم د ورځنيو چارو په تر سره کولو کي د ښځو نقش تر نارينه ډېر دئ . د کډو بارول او اړول ، د مېږو پالنه و روزنه ، د غوږو و کوچو او وړيو توليدول او د کوچياني ژوند نوري اړوندي چاري د

ښځو مسولیتونه او وظایف دي . د بشري وطبیعي حوادثو په وړاندي د قبیلې دفاع د نارینه وو وجایب دي . په پښتني قبیلو کي چي خیني یې د مور یا ښځو نامه ته منسوبې دي ، ددې حقیقت ښکارندوی دي چي گویا ددغو قبیلو د جوړښت پیلامه د بشري تکامل په هغه دوره اړه لري چي په هغې کي د مور یا ښځي نقش تر پلار یا نارینه زیات و . له قراینو څخه داسي ښکاري چي ددغو قبیلو نومونه د اسلام دمقدس دین تر راتګ ډېر وړاندي په لرغونو زمانو کي وضع سوي دي خو د نامه توضیح و تحلیل او پر هغو باندي د نتایجو بنا کول یې په هغه دوران کي سرته رسېدلي دي چي په ټولنه کي د نارینه بابایي (غلبه) ټینګه وه . د دغسي غلبې په وخت کي د ښځي د موقف د ټیټېدلو له پاره هر راز جواز سته او دغه علت دی چي د مور نامه ته منسوبو قبیلو د توهین وسپکاوی ډېري څپېړي خوړلي دي . ددې انتساب اغېزه دومره ستره ده چي د پښتنو نومیالی شاعر خوشحال ختټك ( ۱۰۲۲ ـ ۱۱۰۰ هـ ق ) له خپلي خانی ، دبدبې ، علمي سویې سره سره ځان حقیر ګني ځکه چي قبیله یې ( سباکی انا ) ته منسوبه بلل سوې ده . دی وایي :

که د واړو پښتنو راته تسلیم دی
زه خوبیا د سباکی انا خښتك یم

په پښتنو کي له متیزیو پرته نور خېلونه هم سته چي د ښځو نامه ته منسوب دي . د خښي ابن کند ابن خرښبون په

اولاده کي د کمال نامي دوې ښخې وې چې دواړو ته يې ( انی ) ويل . مشره انی او کشره انی . د يوسفزيو دوه مشهور خېلونه مشرانزي او کشرانزي همدې دوو ښځو ته منسوب دي ( ۱۲ ) په ملېزيو کي د اکوزيو دوه ښاخه ( راني زي او کورا ) د ميندو په نامه ( راني او کوزا ) مشهور دي ( راني زي په اتمانخېلو کډېږي ) . د اپريديو زخه خېل ( زخی انا ) ته منسوب دي . ( ۱۳ )

په پښتني قبيلو کي د لرغونيت اندازه د دوی د نومونو له څرنګوالي څخه هم اټکلېدلای سي . استاد نوميالی هغه قومونه چي د نامه « له کلماتو څخه يې هيڅ تاريخي دلالت نه راوزي » د جامد قبيلوي نوم او هغه چي د نامه له کلماتو څخه يې « د نسبي سلسلې تاريخي دلالت ... څرګندېږي » د مشتق قبيلوي نوم په نامه بللي دي . ( ۱۴ ) په جامد نومو کي کاکړ ، هوتك ، خاخي ، ماکو ، اندړ ، وردګ او نور راتلای سي او په مشتق نومو کي محمد زي ، علي خېل ، احمد زي او نور يادولای سو . د جامدو نومو قومونه تر مشتقو لرغوني دي . ژبنی دليل يې دادئ چي په نامه کي يې داسلامي نومو او عربي ژبي اغېزه نه ليدله کېږي او « دټولنپوهني له پلوه يې دليل دادی چي دادهغي دورې نسبي نومونه دي چي هغه وخت لا د ميراث موسسه نه ده غښتلې سوې او هيڅ داسي اړتيا نسته چي خلك د ( زي ) او ( خېل ) غوندي مشتقي لاحقې په خپلو نسبي نومونوکي زياتي کړي او د پلار دخوا تناسلي رابطه د

میراث په خاطر ژوندی وساتي . »

## خلجي او غلجي :

له دريمي او څلرمي هجري پېړی راپه هیسته په زیاترو لیکلو آثارو کي د « خلجي » په بڼه د « غلجي » قوم ناسم تلفظ او لیکنه لیدل کېږي . او ددغه ناسم تلفظ پر بنسټ ددغه قوم په باب داسي نظریات څرګند سوي دي چي ګویا « خلجیان » له لویه سره تورکی الاصل قبایل دي اوزابلستان ته تر لېږدېدلو وروسته یې ددغه ځای له اوسېدونکو سره د ګډ ژوند په نتیجه کي خپله ژبه و کلتور له لاسه ورکړیَ او « غلجیان » سوي دي . خلجیانو د اوومي پېړی له پیل څخه په هندوستان کي درنه امپراتوري جوړه کړې وه چي څه دپاسه درې نیم سوه کاله یې دوام موندلئ و . ددغه درنې پاچهی په باب کورنیو او بهرنیو څېړونکو بنایسته ډېر ي لیکني کړي دي او په ځینو کي یې ددوی تورکي والي ته اشارې هم ستــه . زمور مشرانو لیکوالو پخپلو مستندو څېړنو سره دا خبره سپینه کـــړې ده چي « خلجیان » او « غلجیان » یوقوم او د تورکي والي نسبت یې ناسم دی . زه به په دې برخه کي د اروانباد علامه عبدالحي حبیبي د هغي څېړني لنډېزاو ترجمه تیمنا رانقل کړم چي زما سره یې همدا اوس انګرېزي متن ستـه او « Khaljies are Afghans » نومېږي ( ۱۵ ). ترکومه ځایه چي ماته معلومه ده اروانباد علامــــــه په دې برخه کي د « اصل خلیجیان افغانی ، رفع اشتباه در بارهٔ ایشان » په

نامه یوه ښېرنه لري چي په ۱۳۴۹ ش کال په تهران کي چاپ سوې ده . ( ۱۶ ) دغه رازېې په (پښتو و لویکان غرنه ) او ( دپښتوادبیاتو تاریخ ـ دوهم ټوک ) کي هم پر دغه موضوع باندي رڼا اچولې ده .

اروانباد علامه عبدالحی حبیبي په نوموړې مقاله کي لیکي « په ۱۹۳۹ م کال د انډین هسټري کانګرس په غونډه کي یوه وېناوال څرګنده کړه چي خلجیان تورکان نه وه دده ښېرنه د کانګرس په خپرونو کي چاپ سوې هم وه . تر ده دمخه اډوارډ توماس ( Edward Thomas ) پخپله مـــــقاله کي چي ( د ډیلي د پښتنو پاچهانو پښلیك ) نومېږي او په ۱۸۷۱ م کي یې په لندن کي خپره کړې وه ، ویلي و چي له ۱۱۹۳ م څخه تر ۱۵۵۴ م پوري د ډیلي سلطانان افغان پښتانه پاچهان وو . سر ولــــــزلي هیګ ( Sir Wolseley Haig ) هم د کمبرج هسټري آف انډیا په دریم ټوك ـ چاپ ـ ۱۹۲۸ م کي د ( تورك و افغانان په هندوستان کي ) تر نامه لاندي ویلي چي خلجیان افغانانو ته منسوب دي ، او زیاتوي چي دوی هغه تورکان وو چي افغاني دود و عادت یې اخیستی و او د افغانستان د ګرمسېر په سیمه کي اوسېدل . » ( ۱۷ ) اروانباد د طبقات ناصري د مولف قاضی منهاج سراج له خولې وایي « له ۶۰۰ هجري را وروسته څه دپاسه پنځلسو سترو خلجیو واکمنانو پر هندوستان واکمني چلوله او په شمالي هند او د بنګال د شمال په لوړو سیموکي یې خراساني او اسلامي ثقافت

خپراوه . خلجیان یو خل بیا له ۶۸۹ څخه تر ۷۲۰ هـ ق پوري د ډیلي واکمنان سول . دا واکمنان د افغانستان غلجیان وو . »

اروانباد حبیبي د محمد قاسم فرشته هغه حکم ته د شك په سترګه ګوري چي د طبقات اکبري د مولف نظام الدین احمد بخشي هروي له خولې یې بیان کړی او ویلي یې دي چي خلجیان د چنګېزخان د زوم خلیج خان ( قلیچ خان ـ م . هـ ) اولاده ده . او لیکي « له تاریخي اسنادو څخه څرګندېږي چي خلجیان یا غلجیان تر چنګېز درې پېړۍ وړاندې په زابلستان کي اوسېدل . د حدودالعالم ناڅرګند مولف په ۳۷۲ هـ کي وایي چي په غزنه او شاوخوا کي یې ... دخلج ترکان ( Taraks of Khalj ) اوسي . دوی کوچي خلك دي او د پسو ډېري رمې لري . د خلج ددغو ترکانو یو زیات شمېر په بلخ ، تخارستان او ګوزګانان کي هم لیدل سوي دي ... منهاج سراج یوځل بیا ثابتوي چي خلجیانو تر چنګېز او د هغه تر زوم ډېر دمخه پر هندوستان باندي واکمني کوله او د امپراتورۍ حدود یې د شمالي بنګال تر لوړو سیمو پوري رسېدل . دده دکتاب شلم فصل په بشپړه توګه ددغو خلکو بیان ته وقف سوی دی . دی زیاتوي چي خلجیان غزنې ته نیژدې ، په ګرمسېر او غور کي اوسېدل ، مګر ددوی د تورکوالي په باب یې هیڅ نه دي ویلي . له بلي خوا دی نور تورکي واکمنان په واضح ډول د تورك اولاده بولي . »

اروانباد حبیبي زیاتوي « خلج چي د خطاطانو له خوا د خلخ په شکل اړول سوی دی ، د ( حدودالعالم ) تر ترتیبولو ډېر وړاندي د جغرافیه لیکونکو په منځ کي یوه ښه پېژندل سوې کلمه وه . ابن خردادبه ( ۲۳۰ ـ ۲۳۴ هـ ) هم د ( خلجیه ) په باب ږغېږي . دي داخبره مني چي د خلج ( Khalj ) او خلخ ( Khallukh ) ترمنځ توپیر سته او وریسې زیاتوي : د خرلخ ( خلخ ) د ژمي د موسم تورکي اوسېدونکي طراز ( Taraz ) ته نیژدې دي . دوی ته ور څرمه د خلج ( خلجیه ) څرخایونه پراته دي . دغه بیان ثابتوي چي دهغه وخت د خلج کوچي قبایل له نني عادت سره سم دکال په ساړه موسم کي تودو سیموته لېږدېدل . ابن خردادبه دغه سیمي جرمیه بللي دي ( بلاذري او منهاج سراج یې جروم بولي ) . ابن خردادبه لیکي چي ددوی ژمني څرخایونه د اکسوس سیند پر دې غاړه پراته دي . ځیني کوچي قبایل اوس هم دغو سیمو ته ځي . »

علامه حبیبي د یوه بل جغرافیه لیکونکي ، ابراهیم ابن محمد اصطخري ( ۳۴۰ هـ حدود ) له خولې لیکي : « خلج د اتراکو یوه څانګه ( Clan ) ده . ( اتراك په غالب ګومان سره د ترك Tarak جمع ده ) ( ۱۸ ) ... دوی د پسو نو لویي رمې لري او ژبه و پوښاك یې تورکو ته ورته دي . » علامه زیاتوي چي خلج و افغان تل یوځای سره یاد سوي او ددوی سیمه ، ریښه او نژاد هم مشترك ښودل سوئ دئ . د عبدالجبار عتبی زوی ابونصر محمد ( ۴۱۴ هـ ) د

سبکتګین د فتوحاتو په ترڅ کي لیکي « افغان او خلج د سبکتګین امر ومانه او اکثرا دده له لښکرو سره مله وو. » ابن الاثیر هم دغه پېښه په عین شکل بیان کړې ده . علامه حبیبي پخپله مقاله کي داهم وایي « په دې ډول خلجیان او غلجیان د هغو تورکانو یا ( غز ) اولاده نه ده چي په اسلامي دوره کي خراسان ته راغلي دي ، بلکي د آرین نژاد هغه هفتالیتس دي چي د سپینو هونانو په نامه مشهور او په تخارستان او زابل کي اوسېدل . ددوی اخلاف د زابل اوسني غلجي قبایل ( کوچي ــ کوشي ) دي . » ازوابناد علامه وروسته د غلجي ، د بدخشان د سیمي په ژبه کي د غلچه ــ غرچه کلمات څېړي او په دري ادب کي د هغو لرغوني مثالونه راوړي او وربسي زیاتوي « محمد کاشغري ( ۴۶۶ هـ ) چي پخپله هم تورك و ، وايي : په ترکمنو غزانو کي څلېرویشت قبیلې سته خو دوې خلجیه قبیلې چي د تورکانو په شان ښکاري ، تورك نه دي . دغه تورکي تاریخ پوه له تورکو سره دخلج دنامه له ګډولو څخه ډډه کوي ... منهاج سراج چي د خراسان اوسېدونکی او ددغي سیمي او دغه راز په هند کي د تورکي واکمنانوپه چارو ښه پوره خبردئ ، تل تورکان د تورك په نامه او خلجیه د خلجیانو په نامه یادوي . » هندوستانی مورخ ضیا برني( ۷۵۸ هـ ) پخپل کتاب تاریخ فیروزشاهي په یوه بېل فصل کي وايي « ... کله چي ملك جلال الدین خلجی د ډیلي پر تخت کښېنوست ، پر خلکو درنه تمامه سوه . څکه چي خلجیان

تورکان نه وو . » ارواښاد لوی استاد حبیبي وروسته د خوشحال خان هغه بیت راوړي چي د هند په پاچهانو کي یې سلطان جلال الدین « د ولایت غلجی » بللی دی

بیا سلطان جلال الدین پر سریر کښیناست
چي په اصل کي غلجی د ولایت و

( پښتنو د خیبر په هاخوا سیمه د ولایت په نامه بلله . ) او وریسې د تورك او ترك د دوو کلمو ترمنځ د اشتباه موضوع څېړي او لیکي : « خلجیان پښتو ویونکي ترك ( Tarak ) وو نه تورك ( Turk ) . ددغو دوو کلمو ترمنځ مغالطه د اسلامي دورې له پیل څخه را شروع سوه . »

لکه لوی استاد چي اشاره کړې ، زما په نظر هم څرنګه چي په عربي الفبې کي ( Tarak ) او ( Turk ) دواړه د ( ترك ) په شکل لیکل کېږي . د اعراب نه شته والي ددغو دوو کلمو تر منځ مغالطه پېښه کړې ده . او وریسې نو د خلجیانو د تورك والي خبري رامنځ ته سوي دي . د لوی استاد دلیکني له مخي « د بکران زوی محمد په ۶۰۰ هجري قمري کي لیکي « ترك ( Taraks ) خلجیان له خلخ ( Khalukh ) څخه زابلستان ته وکوچېدل . دوی د غزنین په اوارو دښتو کي میشته سول . د تودې هوا له امله یې رنګونه واوښتل . ژبه یې هم بدله سوه .... »

پورتنی رانقل سوی روایت د محمد بن نجیب بکران دی چي په پخل اثر جهان نامه کي یې راوړی دی . جهان نامــــه یې په ۶۰۵ هجري کي کښلې ده . ( ۱۹ ) د جهان

نامې دغه روایت د ځینو افغاني څېړونکو پر لیکنو هم اثر کړی دئ چا يې په تایید چاېې په تردید کي لیکني کړي دي له هغو څخه يو هم اروانښاد میر محمد صدیق فرهنگ دی . نوموړی پخپل وروستي کتاب ( افغانستان در پنج قرن اخیر ) د غلجیو په بحث کي لیکي « یك تعداد ازایشان ( پښتونها ـ م . هوتك ) درسدهٔ دوازدهم میلادی در جزء اردوی سلطان محمد غوری به آن سرزمین ( هند ـ هوتك ) داخل شده در آنجا اقامت اختیار نمودند » . او ور پسې زیاتوي « دراین زمان یکی از سران ایشان بنام جلال الدین در سال ۱۲۹۰ م با لقب فیروزشاه برتخت بادشاهی دهلی جلوس نمود و سلسلهٔ را که در تاریخ بنام خلجیان معروف است ، بنیاد نهاد » . ( ۲۰ ) له دې عبارتو څخه داسي ښکاري چي د اروانښاد فرهنگ په نظرخلجیان ( پښتانه ) دي . د خلجي کلمې تر تحلیل وروسته نوموړی وایي « ... امابعد درضمن شرح تهاجمات مسلمانان به هند ، کلمهٔ خلجی ملازم کلمهٔ افغان گردید » . تر دې ځایه د اروانښاد فرهنگ خبري ظاهرا سمي ښکاري خو وروسته ډېره ناسمه نتیجه ځیني راباسي . دی لیکي : « پس ازسقوط دولت خلجی در دهلی و شعبهٔ دیگر آن در مالوه این کلمه در هند از رواج افتاد و به جای آن درخراسان درقبیله ای بنام غلجی ظهور کرد که یکی ازشاخه های مهم ملت پشتون یا افغان بود » . ( ۲۱ ) ( پرکلماتوتاکید زما دی . م . هوتك ) د اروانښادفرهنگ په نظر د غلجي قبیله په هند کي د

خلجیانو د سلطنت تر ړنګېدو وروسته ( ۱۳۱۶ م ) په خراسان ! کي منځ ته راغلي ده . وروسته نو نوموړی مرحوم د غلجیو د نامه په باب د ( غلزوی ) افسانوي وجه تسمیه رانقلوي او لیکي « حکایت بالا به اغلب احتمال بطور کنایه بیانګر این واقعیت تاریخی است که غلجی ها یك شاخهٔ دخیل پشتون ها می باشند یعنی شاخه ای که در بدو امر جزء ملت دیگر بوده اما دراثر آمیزش باپشتونها زبان و رسوم آنها را فراګفته و درآن جذب شده است » .( ۲۲ ) ( پر کلماتوتاکید بیا زما دی . م . هوتك ) د نقل پر وروستی برخه باندي د محمد بن نجیب بکران د جهان نامې اغېزه پرته ده . خو داچي د غلجیو ( دخیلوالی ) يې يو تاریخي واقعیت بللئ او په لومړي سر کي يې دا قبیله د يوه بل ملت جزء بللې ده په يوخه شننه ارزي . دی وايي د غلجیو قبیله د خلجیانو د دولت تر سقوط وروسته په خراسان کي منځ ته راغله . له ( خراسان ) څخه دده مطلب د غزني شاوخوا سیمي دي څکه دې خبري ته يې په ۶۴ مخ کي هم اشاره کړې ده . ګویا د خلجیو د سلطنت د ړنګېدو پر وخت د غزني په شاوخوا کي پښتون ولس موجود و . دغو خلجیو له هغو سره تر ګډون وروسته د هغوی ژبه او دودونه زده کړل او په هغوی کي جذب سول . پوښتنه داده چي په دغه ولس کي د پښتون قام کومي قبیلې موجودي وې ؟ ددغي پوښتني خواب زموږ يوه درانه استاد دوکتور حبیب الله تږي

ورکړی دی چي وروسته به يې ولولئ . اروابناد فرهنګ تاريخي حقايق د کلماتوپه پوښ کي سره ژوولي او تحريف کړي دي . حقيقت دادی چي د هند خلجي واکمنان همدغه غلجي پښتانه وه چي له خپلي پلرنی سيمي ( نني افغانستان ) څخه هند ته تللي او هورې يې درنه پاچهي جوړه کړې وه . نه داچي غلجي پښتانه د خلجيانو تر سلطنت وروسته په خراسان کي منځ ته راغلل . ماته داسي ښکاري چي اروابناد فرهنګ د خلجيو او غلجيو ترمنځ د تساوی نخښه ايښې او منلې يې ده خو د دغه مساوات ته يې معکوسه معادله تړلې ده او همدغه ځای دی چي لوستونکي د پښتنوپه باب دده پر خلوص نيت باندي شکمن کوي .

لکه وړاندي چي مو اشاره ورته وکړه د جهان نامې هغه حکم ته چي وايي« خلجيان اصلا توركان وو زابلستان ته ولېږدېدل . هلته ميشته شول او خپله ژبه او عادات يې هېرکړل . دزابلستان دخلکو ژبه او عادات يې کسب کړل او پښتانه غلجيان ترې جوړ شول »، ښاغلي پوهاندتړي صاحب ډېره معقول اوپرځـــــای ځواب ورکړی دی . دی ليکي : « ... د خلجيانودمهاجرت اوپه زابلستان کي د هغوی د منحلېدو پېښه ، طبعا ، له ۶۵۰ هجري نه پخواشوې ده . ( ځکه جهان نامه په همدې کال ليکل سوې ده . هوتك ) د جهان نامې له متن نه داهم په صراحت ښکاري چي ددغو مهاجرو ځېره او ژبه دجهان نامې د

لیکني له وخت نه پخوا بدله شوي او ژبه یې هم له دې نه وړاندي بدله شوې وه ... که څوك د جهان نامې خبره مني هغه به ضرور دا هم مني چي ترك خلجیان د شپږمې پېړۍ له اواخرو نه ډېر پخوا زابلستان ته لېږدېدلي دي ...او کوم څېړونکي چي وایي ترکي خلجیان د زابلستان په ځایي خلکو منحل شوي او په نهایت کي په پښتنو غلجیانو بدل شوي دي هغوی په حقیقت کي داخبره تصدیقوي چي لږترلږه د دوهمې او دریمې هجري پېړۍ په حدودو کي د زابلستان ځایي اوسېدونکي پښتانه وو ... له بلې خوا بیا ( دغه کسان ) وایي چي پښتنو په ۱۴ او ۱۵ پېړۍ کي د غزني سطح مرتفع اشغال کړه .» پوهاند تږی صاحب ددغو دوو خبرو تر بیانولو وروسته وایي « له دې دوو خبرونه یوه هرومرو غلطه ده . خوداچي کومه یې غلطه ده ؟ ددې سپینول هغه چا ته ورپه غاړه دي چي وایي ترك خلجیان د زابلستان په ځایي خلکو کي منحل شوي او پښتانه غلځیان ترې جوړ شوي دي .» ( ۲۳ )

**********

زماپه نظرد پښتنو د اصل ونسب د هغوی د قبیلواو قومونو او دغه راز د هغوی د روایتي شجرو په باب د وروستیو کلونو څېړنو چي زما لیکنه یې یوه کړې ده ، دغوځو موضوعگانو ته د پای ټکي ایښي دي :

— د پښتنو د سامیت نظریه پر علمي اساس ولاړه نظریه نه ده . پښتانه اریایی الاصل قوم دئ . که د سامي نژاد ځیني

ګروپونه او افراد د تاریخ په بېلابېلو پړاوونو کې ورسره یوځای سوي او پکښې منحل سوي وي ، وي به .

ــ له قیس عبدالرشید سره د پښتنو ټول افسانوي روایت دی او دمنلو نه دئ . په روایتي شجرو کې چې د ( کیس ) کومه یادونه سوې ده هغه باید له کسي غر ، کاسي قوم او په غور کې په دغه نامه د یوې درې له موجودیت سره په ارتباط کې مطالعه سي ، نه دا چې له هغه څخه د یوه عبراني نوم په توګه د پښتنو د بني اسراییلیت د توجیه له پاره کار واخیستل سي .

ــ د غلجیو دنامه په باب جوړه سوې افسانه نه د منلو وړ ده ، نه د تکرارولو .

ــ خلجي او غلجي د یوه قوم دوه نومونه دي اوسره بېلول یې نه د منلو وړدي ، نه د تکرارولو .

ــ پښتون ، افغان ، پټهان ، روهیله د یوه ایتنیکي واحد بېلابېل نومونه دي چې افغان یې اوس په پراخه معنی د افغانستان د ټولو اتباعو د ملي هویت له پاره منل سوی دی او پر پښتنو سربېره نور ټول هغه قومونه چې د افغانستان په جغرافیوي او سیاسي قلمرو کې اوسي ، د افغان په نامه یادېږي .

ــ پښتانه یوازي د بېټ ، سړه بن او غرغښت اولاده نه ده . په پښتنوکې خیني دومره لوی قومونه سته چې په یوازي سر ددغو درو واړو نیکونو تر مجموعي اولاد زیات بلل کېږي چې موږ یې مصداق په ( پورته اسمان ، کښته سلیمان ) یا

( چي پيدا دي گدانه کړه ، نودي څله پښتانه کړه ؟ ) متل وشمه خبرو کي وينو .

ـــ د پښتنو ژبه ( پښتو ) د هندواروپايي ژبو له شرقي ښاخه د اوستا په گروپ پوري تړلې ده .

دا موضوعات اوس د يوه داسي حقيقت په توگه منل سوي دي چي د ختيځ او لويديځ پوهان وربانديي متفق الرايه دي او د ترديد تکی پکښې نهويني .

## د څلرم څپرکي لمنليکونه

( ۱ ) د فاضل استاد پوهاند رشاد په عقيده دغه نوم « په راوروسته کي حسين سوی دی . اوسوني ( Uswinee ) په مونث صورت په سانسکريټ کي هغه لومړي ستوري ته وايي چي د سپوږمی په مدار کي واقع دئ او د سپوږمی لومړي منزله ته هم وايي » ( وگورئ : لودي پښتانه ـــ د عبدالشکور رشاد ليکنه ـ ۳ مخ ـ اوله حاشيه ـ کابل ـ ۱۳۳۶ ش )

( ۲ ) ددغي افساني تکرارول پر خينو خواخوږو پښتنو ښه نه لگېږي . ماچي په ډېوه مجله کي په دې باب ليکني کولې ( ۱۹۹۵ ـ ۱۹۹۶ م ) ښاغلي قدرت الله حداد خپله ناخوښي د همدې مجلې د دريم کال په شپږمه گڼه کي وښووله . زه له دغو خواخوږو څخه بخښنه غواړم خو په دې بحث کي مجبور يم چي افسانه يو وار بيا تکرارکړم څکه له تکرار پرته يې نقد ول بې ربطه کېږي .

( ۳ ) هروی ـ نعمت الله ـ مخزن افغاني ـــ اردو ژباړه ـــ

۴۳۵ مخ ـ
( ۴ ) تاریخ سلطانی ـ ۶۹ مخ
( ۵ ) حیات افغاني ـ پښتو ژباړه ـ د تعلیقات برخه ـ د پوهاند رشاد صاحب په قلم .
( ۶ ) کهزاد ـ احمدعلی ـ افغانستان در شاهنامه ـ ۲۸۶ ـ ۲۸۹ مخونه ـ کابل ـ ۱۳۵۵ ش
( ۷ ) هماغه اثر ۲۸۷ مخ
( ۸ ) نومیالی ـ محمد انور ـ د پښتنو د ټولنیز تاریخ مبادي ـ ۳۰ مخ ـ مسکو ـ ۱۹۹۰ م
( ۹ ) حبیبي ـ تاریخ مختصر افغانستان ـ ۷۵ مخ
( ۱۰ ) شینواری ـ دوست ـ پښتانه څوك دي ؟ ۶ ـ ۳۲ مخونه ـ پېښور ـ ۱۹۹۸ م
( ۱۱ ) د « اصل و وصل » په برخه کي چي ما په ډېوه مجله کي کوم استنتاجونه بیان کړي دي ، پر هغو مي نوې کتنه کړې ده چي تاسي وړاندي ولوستل .
( ۱۲ ) حافظ ـ رحمت خان ـ خلاصه الانساب ـ ۱۱۲ مخ پښتو اکیډیمي پېښور یونیورسیټی ـ ۱۹۷۳ م
( ۱۳ ) د هجري یاد ـ د مقالو مجموعه ـ ۱۰۹ مخ
( ۱۴ ) نومیالی ـ دپښتنو د ټولنیز تاریح مبادي ـ ۴۷ مخ
( ۱۵ ) ددغي لیکني کاپي ماته ښاغلي سلیمي کندهاري راکړې ده چي ورڅخه ممنون یم .
( ۱۶ ) خپل ـ هارون ـ آفریده های مهجور علامه حبیبی ـ ۳۲ مخ ـ کابل ـ ۱۳۶۷ ش

( ۱۷ ) تر دې وروسته چي د خلجيانو په باب د اروانښاد حبيبي خبره رانقلېږي ، لوستونکي دي پوه وي دا دهغي مقالې محتويات دي چي وړاندي مي ياده کړه .

( ۱۸ ) د عربي ژبي د اصولو له مخي اتراک د افلاک پر وزن د ترک ( د لومړي او دوهم په زور ) جمع کېدلای سي .

( ۱۹ ) تړی ـ دوکتور حبيب الله ـ پښتنانه ـ ۸۱ مخ ـ پېښور ـ ۱۹۹۹ م

( ۲۰ ) فرهنگ ـ میرمحمدصدیق ـ افغانستان درپنج قرن اخیر ـ اول جلد ـ ۳۷ ـ ۳۸ مخونه

( ۲۱ ) ( ۲۲ ) هماغه اثر ـ ۳۸ مخ

( ۲۳ ) تړی ـ پوهاند دوکتور حبيب الله ـ پښتانه ـ ۸۱ ـ ۸۴ مخونه






# Pashtoon Tribes And Their Family Trees.

By

Mohammad Masoom Hotak

د افغانستان د کلتوري ودې ټولنه - جرمني
VEREIN ZUR FORDERUNG DER AFGHANISCHEN KULTUR E.V
د خپرونو لړ ( ۱۷ )